


د پوهنې وزارت
د تعليمي نصاب د پراختيا او د
ښوونکو د روزنې معينيت
د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي
کتابونو د تاليف لوی رياست

# د ښوونکي لارښود
# د قرآن کريم زده کړه
## دويم ټولګی




د ښوونکي لارښود د قرآن کريم زده کړه - دويم ټولګی





د چاپ کال: ۱۳۹۳هـ. ش.




**د پوهنې وزارت**

د تعليمي نصاب د پراختيا او د
ښوونکو د روزنې معينيت
د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي
کتابونو د تاليف لوی رياست

# د ښوونکي لارښود
# د قران کريم زده کړه
# دويم ټولگی

د چاپ کال: ۱۳۹۳ هـ. ش

## ليکوالان:

- مایل آقا متقی
- عبدالسلام تائب
- شهید الله عزیزی

## علمي او مسلکي اډېټ:

- محمد آصف کوچی

## د څارنې کمېټه:

- دکتور اسد الله محقق د پوهنې د وزارت د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معین
- دکتور شېرعلي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې رییس
- سرمؤلف عبدالظاهر ګلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی رییس

## کمپوز او ډیزاین: هارون نیازی



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي
پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه اسمان

په سینه کې د اسیا به
لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحیم**

**د پوهنې د وزیر پیغام**

**ګرانو استادانو او ښوونکو،**

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې رامنځته کیږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم علمي او رغنده بدلون ومومي. البته نه ښایي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

دښوونکی د لارښود دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتیب شوی دی. د تدریس د نویو میتودنو له مخې فعالیتونه په کې ورزیات شوي دي. د زده کړې په بهیر کې د زده کوونکو فعال ساتل د درسي پلان برخه شوې ده.

هیله من یم د دې کتاب منځپانګه، چې له لارښوونو او تعلیمي پلان سره سم د فعالې زده کړې د میتودونو د کارولو له لارې تدریسیږي، ستاسو درنو استادانو د ګټې وړ وګرځي. د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه غوښتنه کیږي، د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې د پوهنې هیلې ترسره شي او زده کوونکو او هېواد ته ښې بریاوې ور په برخه کړي.

زه پر دې ټکي پوره باور لرم چې زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او دروند مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو او علمي معیارونو سره سم د ټولنې د څرګندو اړتیاوو له مخې پراختیا ومومي.

په دې ډګر کې د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده وړاندیزونو له لارې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې مرسته کړې، له ملي او نړیوالو درنو موسسو او نورو ملګرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین، د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې یې مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردګ

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر

# برلیک

**لوست**: لومړی

## سرلیک: د قرآنکریم فضیلت

صفحه:

وخت: یو درسي ساعت (٤٥) د قیقې

موخې: زده کوونکي باید: د قرآنکریم له فضیلتونو سره آشنا شي.

-د قرآنکریم فضیلتونه بل چاته بیان کړی شي.

- د قرآنکریم له تلاوت سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:** د قرآنکریم فضیلتونه اوګټې ډیرې دي د ابن صلاح په قول سره د قرآنکریم لوستل د انسان هغه کرامت او ځانګړتیاده چې ملایکې دا صفت نلري اما دیته واداري دي چې د قرآنکریم تلاوت له انسان څخه و اوري.

الله جل جلاله قرآنکریم د هر توري په لوستلو باندې انسان ته لس نیکۍ ورکوي. د قرآنکریم د تلاوت فضلیت نسبتاً تسبیح، تهلیل او تکبیرته ډیردی.

-بل دا چې د قرآنکریم تلاوت عبادت دی باید د هغې د تلاوت قدر وپیژنو او حضرت محمد (ﷺ) فرمایلی دي هر کله چې یو مسلمان د سهار د لمانځه لپاره مسجد ته روان شي او وروسته دوه آیته د قرآنکریم زده کړي او یا یې ووایي د هر آیت د ویلو په مقابل کې د یو چاغ اوښ اجر ورکول کیږي، نظر په لوستلو د تعداد د آیتونو اجر زیاتیږي.

**د تدریس تګ لاره**: مطالعه، پوښتنه او ځواب، انفرادي.

**مرستندویه توکي**: کتاب؛ کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سـریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د احوال پوښتنې، ټولګي تنظمیولو، حاضرۍ اخستلو څخه ورسته د دویم تولګي د قرآن کریم د زده کړې مضمون زده کوونکو ته معرفي کوي او د هغې دګټو په اړه ورسره په مختصر دول خبرې کوي.<br>پر تخته د نوي لوست عنوان (د قرآنکریم فضیلت) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره لولي. | زده کوونکي لوست ته په ښه توګه غوږ نیسي. |
| دلوست وړاندیز ٢٥دقیقې | وروسته لوست د دریو زده کوونکو په واسطه لولي او ټولګی کنترولوي او د زده کوونکو غلطي اصلاح کوي.<br>وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او خپله د ټولګي په هر طرف کې ګرځي او د ټولو زده کوونکو څخه څارنه کوي او ستونزې یې حلوي.<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي تر څو هر یو دخپل ټولګیوال سره د قرآن کریم د فضیلتونو په هکله خبرې اترې وکړي. | زده کوونکي لوست په چوپه خوله سره مطالعه کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | له څلورو زده کوونکو څخه غواړي تر څو هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د قرآن کریم یو فضیلت بیان کړي او په ضمن کې یې تشویق کوي هم. | زده کوونکي دې په دوه کسیزه توګه د قرآنکریم د فضیلتونو په اړه خبرې اترې وکړي. |
| ۱۰ دقیقې | **لنډیز:**<br>د قرآن کریم تلاوت ډېر ثواب لري د قرآن کریم تلاوت عبادت دی.<br>**ارزونه:**<br>د لاندې پوښتنو په طرح کولو سره زده کوونکي ارزوي:<br>۱- څوک کولای شي ووایي چې د نن ورځې د لوست عنوان مو څه و؟<br>۲- څوک کولای شي ووایي د قرآنکریم د یو توري تلاوت څو نیکۍ لري؟<br>۳- څوک کولای شي ووایي چې د تلاوت معنی څه شی ده؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنونه ځوابونه ورکوي. څلور زده کوونکي په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راځي او کړنې تر سره کوي او نور زده کوونکي د هغوی کړنو ته پام اړوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست دوه ځله په کتابچو کې ولیکي. | |

## لوست: دویم

## سرلیک: د قرآنکریم فضلیت

مخ:

وخت: یو درسی ساعت (٤٥) دقیقې.

موخې: زده کوونکي باید:

- د قرآنکریم د فضیلتونو سره آشنایي پیداکړي.
- د قرآنکریم فضیلتونه نوروته بیان کړی شي.
- د قرآنکریم د تلاوت سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:** د قرآنکریم هغه شرطونه او ادبو نه چې د قرآنکریم د تلاوت په وخت کې یې باید په یاد ولرو او هرویونکي تـه ضـروري او لازمي دي عبارت دي له:

١- د هغو چا لپاره چې قرآنکریم له یاده تلاوت کوي او دس کـړل ښـه او مسـتحب کـار دی، خـو هغـه څـوک چـه لـه مخـه قرآنکریم تلاوت کوي اودس کول ورته حتمی او لازمي کار دی.

٢- تلاوت کوونکی دې د تلاوت په وخت کې تلاوت ته سم او نیغ کیني، تکیه دې نه کوي.

٣- د قرآنکریم تلاوت د خالق او مخلوق ترمنځ راز او نیاز دی له همدې کبله باید د قاري لباس او ځای پاک وي.

٤- قرآنکریم باید په پاکو ځایونو کې تلاوت شي نو له همدې وجې په حمام، بازار او نا پاکه ځای کې جواز نلري.

٥- د قرآنکریم تلاوت باید په تعوذ ( اعوذ بالله من الشیطان الرجیم ) سره شروع شـي ترڅـو اوریـدونکي قرآنکـریم تـه غـوږ ونیسي.

**د تدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه.

**مرستندویه توکي**: کتاب؛ کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولـو او حاضـری اخسـتلو څخـه وروسته مخکنی لوست ارزوي.<br>- د نوي لوست عنوان (د قرآن کریم فضیلت) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب غږ سره لولي.<br>- له څلورو زده کوونکو څخه غوښتنه کوي ترڅو هر یو په خپل وار سـره د تـولګي مخې ته راشي او د قرآن کریم یو فضیلت بیان کړي او ضمنا ورسره مرسـته کـوي او تشویق کوي یې. | زده کـوونکي لوسـت ته غوږ نیسي.<br>څلـور زده کـوونکي پـه خپـل وار سـره د ټـولګي مخـې تـه راځي او خپلې کړنې سـرته رسـوي او نـور زده کـوونکي د هغـه کړنو ته پام اړوي. |
| د لوست وړاندیز ٢٥ دقیقې | - وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره مطالعه کـړي او خپله په ټولګي کې ګرځي او د زده کوونکو څارنه کوي او ستونزې یې حلوي<br>- وروسته لوست د دریو زده کوونکو په واسطه لولي او خپله ټولګی کنترولـوي او د | |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | زده کوونکو ستونزې حلوي.<br>- او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو هر یو دخپل ټولګیوال سره د قرآن کریم د فضیلتونو په اړه خبرې اترې وکړي.<br>تکرار:<br>- مونږ له قرآن کریم سره مینه لرو او هغه زده کوو.<br>- غوره مسلمان هغه څوک دی چې قرآن کریم زده کړي او نورو ته یې وښيي. | - زده کوونکي لوست په چوپه خوله سره لولي<br>زده کوونکي د قرآن کریم د فضیلت په اړه خبرې اترې کوي<br>- زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکوي |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي ووایي چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د قرآن کریم د زده کړې په اړه څه فرمایلي دي؟<br>۲- څوک کولای شي ووایې مونږ ولې له قرآن کریم سره مینه لرو؟<br>۳- ستاسو له نظره غوره مسلمان څوک دی؟ | |
| | **کورنۍ دنده:**<br>- زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست دوه ځله په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

**لوست: دریم**

## سرلیک: د زور حرکت (فتحه)

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (٤٥) دقیقې.

موخې: زده کوونکي باید:

- د زور له حرکت سره آشنایي پیداکړي.
- د زور حرکت په تورو باندې صحیح تلفظ کړای شي.
- د زور حرکت له صحیح لوستلو سره علاقه پیداکړي.

**اړینه پوهه:**

د زور حرکت په حرف د پاسه لیکل کیږي او د معنی په ورکولو کې ډیر مهم رول لري او که په ځینو ځایونو کې مراعات نه شي یو ژور بدلون منځ ته راځي حتی چې په لمانځه کې د فساد لامل ګرځي: لکه د منذِرین او منذَرین کلمې چې اوله د ډاروونکي په معنا ده یعنی پیغمبران او دوهمه کلمه د ډارول شوو په معنی راځي لکه چې الله ﷻ فرمایلي (وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا فِيهِم مُّنذِرِينَ (٧٢) فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنذَرِينَ (٧٣)[الصافات]

**د تدریس تګ لاره:** انفرادي، پوښتنه او ځواب، مطالعه.

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي، د بیلګې په توګه پوښتنه کوي: | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه کوي. |
| د لوست وړاندیز ٢٥ دقیقې | -څوک کولای شي ووایي چې حضرت محمد (ﷺ) د قرآن کریم د زده کړې په اړه څه فرمایلي دي؟<br>-د نوي لوست د عنوان ( د زور حرکت) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب آواز سره لولي.<br>-وروسته اته زده کوونکي په خپل وار سره د ټولګي مخې ته را غواړي او لوست وربانديې تکراروي او په هر زده کوونکي یوه کرښه لولي.<br>-ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو زور لرونکي توري په چوپه خوله د کتاب له مخې مطالعه کړي او وروسته یې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکي لوست ته ښه غوږ نیسي.<br>هغه زده کوونکي چې په کړنه ګمارل شوي په ښه شکل یې تر سره کوي.<br>زده کوونکي په چوپه خوله لوست مطالعه کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **تکرار:**<br>د چوپې خولې مطالعې په بهیرکې د هر یوه ستونزې پـه آرامـۍ سـره حـل کـوي ترڅو په ټولګي کې آرامه او مناسبه فضا رامنځ ته شي او له نا آرامۍ څخـه ډ ډه وشي.<br>**ارزونه:**<br>۱- ځوک کولای شي د لوست او له کرښه پر تخته ولیکي؟<br>۲- ځوک کولای شي د زور حرکت په ( ل،س،ق،ن ) باندې تلفظ کړي؟<br>۳- ځوک کولای شي ووایي چې زور د حرف په کوم ځای لیکل کیږي؟ | زده کـوونکي خپلـه کړنـه تر سره کوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي چې دا لوست دوه ځله ووایي. | زده کـوونکي پوښـتنو تـه ځوابونه ورکوي. |

## لوست: څلورم

## سرلیک: د زېر حرکت (کسره)

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (٤٥) دقیقې.

موخې: زده کوونکی باید:

- د زیر له حرکت سره آشنا شي.
- د زیر حرکت په تورو سره په ښه ډول تلفظ کړی شي.
- د زیر حرکت له ښو ویلو سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:**

د زیر حرکت د توري لاندې لیکل کیږي او د معنی په ورکولو کې ډېر مهم رول لري که په ځینو ځایونو کې مراعات نشي ژور بدلون منځ ته راځي حتی په لمانځه کې د فساد باعث گرځي نو د بیلگې په توگه د منذرین او منذَرین کلمې چې مخکې بیان شوې لکه څرنگه چې الله جل جلاله فرمایلی دي: (وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا فِيهِم مُّنذِرِينَ (٧٢) فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنذَرِينَ (٧٣)[ الصافات].

**د تدریس تگ لاره**: انفرادي، پوښتنه او ځواب، مطالعه.

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، تولگي تنظیمولو او حاضرى اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي، د بیلگې په توگه پوښتنه کوي:<br>-څوک کولای شي د زور حرکت په ( ل، س، ق، ن) سره تلفظ کړي؟ | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست وړاندیز ٢٥ دقیقې | د نوي لوست عنوان (د زیر حرکت ) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او په مناسب آواز سره یې ورته لولي. وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو په خپل وار سره د تولگي مخې ته راشي او لوست له مخه ولولي ښوونکی تولگی کنترلوي او غلطي یې اصلاح کوي. او په هر زده کوونکي یوه کرښه لولي.<br>وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو زیر لرونکي توري د کتاب له مخې په چوپه خوله سره ولولي او په کتابچو کې یې ولیکي.<br>تکرار: د چوپې خولې مطالعې او د لیکلو په لړکې د هر یوه ستونزې په نرمۍ سره حلوي ترڅو د مطالعې آرامه او مناسبه فضا نا آرامه نشي. | زده کوونکي لوست ته ښه غوږ نیسي.<br>هغه زده کوونکي چې په کرښه گمارل شوي په ښه ډول یې تر سره کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- ځوک کولای شي ووایي چې زیر د توري په کوم ځای لیکل کیږي؟<br>۲- ځوک کولای شي په ( ل،س، ق، ن ) تورو باندې د زیر حرکت تلفظ کړي؟<br>۳- ځوک کولای شي د لوست اوله کرښه پر تخته ولیکي؟ | زده کوونکي په چوپه خوله لوست مطالعه کوي.<br>زده کوونکي کړنې ترسره کوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي چې دا لوست دوه ځله ولولي. | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |

## لوست: پنځم

## سرلیک: د پیښ حرکت ( ضمه )

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (٤٥) دقیقې.

موخې: زده کوونکی باید:

- د پیښ له حرکت سره آشناشي.
- د پیښ حرکت په تورو سره په ښه شکل تلفظ کړی شي.
- د پیښ حرکت له ښو ویلو سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:**

د پیښ حرکت د وړو کي واو په څیر برسیره په توري لیکل کیږي او د معنی په ورکولو کې ډیر مهم رول لري او که په ځینو کلمو کې مراعات نشي ژور بدلون منځ ته راځي حتی په لمانځه کې فساد رامنځ ته کوي، د بیلګې په توګه په سورت بقره کې راځي ( (وَإِذِ ابْتَلَى إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ بِكَلِمَاتٍ))[١٢٤البقره]ژباړه: الله جل جلاله ابراهیم علیه السلام په شرعي احکامو وآزمایه. که د "ربه" په کلمه کې د ضمې پرځای فتحه تلفظ شي په معنا کې ژور بدلون راځي. معنی یې په دې شکل کیږي چې ابراهیم علیه السلام خپل رب باندې آزمیښت راوست نعوذ بالله من ذلک.

**د تدریس تګ لاره**: پوښته او ځواب، انفرادي، مطالعه

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي، د بیلګې په توګه پوښتنه کوي: | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |

| | | |
|---|---|---|
| د لوست ورانديز ۲۵ دقيقې | -څوك کولای شي د زير حرکت په ( ل، س، ق، ن ) سره تلفظ کړي؟<br>د نوي لوست د عنوان ( د پيښ حرکت ) له ليکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي. او لوست په مناسب آواز سره لولي. وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي تر څو هر يو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او لوست د کتاب له مخې ولولي او خپله ټولګی کنترولوي او د هغوی غلطۍ اصلاح کوي. کله چې هر زده کوونکی يو کرښه لولي. وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو پيښ لرونکي توري په چوپه خوله د کتاب له مخې ولولي او بيا يې په کتابچو کې وليکي.<br>**تکرار:**<br>په چوپه خوله د لوستلو او د فعاليتونو د ليکلو په لړکې د هغوی ستونزې حلوي او لوستلو او ليکلو ته يې هڅوي. | زده کوونکي لوست ته ښه غوږ نيسي.<br>هغه زده کوونکي چې په فعاليت ګمارل شوي په ښه شکل يې تر سره کوي.<br>زده کوونکي لوست په چوپه خوله سره مطالعه کوي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱- څوك کولای شي د پيښ حرکت په ( ل، س، ق، ن ) سره تلفظ کړي؟<br>۲- څوك کولای شي د لوست د اولې کرښې درې کلمې پر تخته وليکي او حرکت ورکړي؟<br>۳- څوك کولای شي ووايي چې پيښ د توري په کوم ځای سره ليکل کيږي؟ | زده کوونکي کړنې ترسره کوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو نوموړی لوست دوه ځله ولولي. | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |

## لوست: شپږم

## سرلیک: په قرانې کلمو کې د حرکتونو تطبیق

صفحه:

وخت: یو درسي ساعت (٤٥) د قیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د زور، زیر او پیښ حرکتونه په کلمو کې تطبیق کړي.
- د زور، زیر او پیښ حرکتونه په دقت سره په کلمو کې تشخیص کړی شي.
- د حرکتونو له صحیح ویلو سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:**

**د تدریس کړنلاره:** مطالعه، انفرادي، پوښتنه او ځواب.

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي، د بیلګې په توګه پوښتنه کوي:<br>-څوک کولای شي په ( ل، س،ق، ن )تورو باندې د پیښ حرکت تلفظ کړي؟ | زده کوونکي خپل لوست ته په غور سره غوږ نیسي. |
| د لوست وړاندیز ٢٥ دقیقې | د نوي لوست د عنوان ( په کلمو کې د حرکتونو تطبیق ) له لیکلو څخه وروسته زده کوونکي لوست ته متوجه کوي او لوست په لوړ غږ سره لولي.<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي ترڅو په چوپه خوله سره لوست مطالعه کړي.<br>ښوونکی د مطالعې په لړ کې د ټولګي په هرګوډ کې ګرځي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>وروسته زده کوونکي په مناسبو ډلو ویشي:<br>اوله ډله: هغه کلمې چې فتحه لري له حرکتونو سره په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>دوهمه ډله: په خپلو کتابچو کې د زیر حرکت په کلمو کې کاروي.<br>دریمه ډله: د پیښ حرکت په کلمو کې لیکي.<br>وروسته د هرې ډلې استازی په نوبت سره د ټولګي مخې ته را غواړي ترڅو د خپلې ډلې د مربوط لوست څخه دوې کلمې پرتخته ولیکي او حرکتونه ور کړي.<br>مرسته اوهڅول به هم تر سره کیږي. | لوست په چوپه خوله لولي. |
| ١٠ دقیقې | **ارزونه:**<br>١- څوک کولای شي د بیلګې په توګه یوه کلمه چې زیر ولري پر تخته ولیکي؟ | د هرې ډلې استازی په نوبت سره د ټولګي |

| | | |
|---|---|---|
| | ۲- څوک کولای شي د بیلګې په توګه یوه کلمه چې پیښ ولري پرتخته ولیکي؟<br>۳- څوک کولای شي د زور له مثال څخه یوه کلمه پر تخته ولیکي؟<br>٤- څوک کولای شي ووایي چې فتحې، کسرې او ضمې ته په پښتو کې څه وایي؟ | مخې ته راځي او ورسپارل شوی فعالیت تر سره کوي او نور زده کوونکي ورته غوږ نیسي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ور کول کیږي ترڅو د نن ورځې د لوست توري په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |

## لوست: اووم

## سرلیک: سکون

وخت: یو درسي ساعت (٤٥) د قیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- له سکون سره آشنا شي.
- په تورو باندې سکون په صحیح ډول سره تلفظ کړی شي.
- د سکون له صحیح ویلو سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:**

سکون په لغت کې د آرامتیا په معنا سره دی. او د تجوید په اصطلاح کې د حرکت ضد ته ویل کیږي او په سکون سره پیل نه کیږي او هغه توری چې سکون ولري مخکینی حرکت لرونکی حرف یې آواز څرګندوي.

**د تدریس تګلاره**: انفرادي، پوښتنه او ځواب، مطالعه

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي:<br>څوك کولای شي د فتحې له مثال څخه یوه کلمه، د کسرې له مثال څخه یوه کلمه د ضمې له مثال څخه یوه کلمه د تختې پر مخ ولیکي؟<br>پر تخته باندې د نوي لوست د عنوان (سکون) له لیکلو څخه وروسته زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او لوست په مناسب آواز سره لولي. | د زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |

| | | |
|---|---|---|
| د لوست وړاندېز ۲۵ دقیقې | لوست پر تخته لیکي او زده کوونکي تختې ته متوجه کوي او لوست یوځل بیا د تختې له مخې لولي.<br>وروسته له پنځو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او لوست د تختې له مخې ولولي ښوونکی یې غلطۍ اصلاح کوي او هغوی تشویق کوي.<br>-وروسته زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو لوست په پټه خوله سره مطالعه کړي او اولې دوې کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>وروسته له زده کوونکو څخه غواړي تر څو هر یو له خپل ټولګیوال سره لوست تکرار کړي یعنی اول زده کوونکی به لوست لولي او دوهم زده کوونکی به ورته غوږ نیسي. او بیا به دوهم زده کوونکی لوست لولي او اول زده کوونکی به ورته غوږ نیسي. | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>هغه زده کوونکي چې په فعالیت سره ګمارل شوي په غوره بڼه یې تر سره کوي.<br>زده کوونکي لوست په چوپه خولې سره مطالعه کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي د تختې پر مخ د ( ب، ت، ج ) پر سر سکون ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست وروستنی کرښې دری کلمې په ښه بڼه تلفظ کړي؟<br>۳- څوک کولای شي ووایي چې د نن ورځې د لوست عنوان څه شی ؤ ؟ | زده کوونکي فعالیت تر سره کوي. |
| | **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو نننی لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |

**لوست**: **اتم**

## سرلیک: په قراني کلمو کې د سکون تطبیق

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (۴۵) د قیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- له سکون سره آشنا شي.

-په تورو کې د سکون ښه درک کړی شي.

- د سکون له صحیح ویلو سره علاقه پیداکړي.

**اړینه پوهه:**

سکون په لغت کې د آرامتیا په معنی سره دی او د تجوید پر اصطلاح کې د حرکت ضد ته ویل کیږي او پیل په سکون سره نه کیږي او هر ساکن لرونکی توری د مخکیني متحرک توري په واسطه خپل آواز ښکاره کوي.

**د تدریس تګ لاره**: مطالعه، انفرادي، پوښتنه او ځواب.

**مرستندو په توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي د تختې پر مخ ( ص، ض، ط، ظ، ع، غ ) تورو باندې سکون ولیکي؟<br>د تختې پر مخ د نوي لوست د عنوان (په کلمو کې د سکون تطبیق) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست پر مناسب آواز سره لولي.<br>- وروسته له خو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او لوست د کتاب له مخې ولولي او د هغوی غلطۍ اصلاح کوي. | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست وړاندیز ۲۵ دقیقې | وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره مطالعه کړي.<br>څلور زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي څو په خپل وار سره دوه زده کوونکي د یوې یوې کلمې په آخر کې سکون ولیکي او دوه نور د یوې یوې کلمې په منځ کې سکون ولیکي. | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>هغه زده کوونکي چه په دندو کمارل شوي په ښه بڼه یې سرته رسوي.<br>زده کوونکي په چوپه خوله سره لوست لولي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي د تختې پر مخ د کلمې په آخر کې د سکون مثال ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست آخري کرښه په ښه توګه ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي ووایي چې د نن ورځې د لوست عنوان څه شی ؤ. | زده کوونکي فعالیت تر سره کوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي تر څو د نن ورځې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |

## لوست: نهم

## سرلیک: په قرآني کلمو کې د ( طبیعی مد ) تطبیق

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (٤٥) د قیقې

موخې: زده کوونکي باید:

-د مد توري وپیژني.

-پردې پوه شي چې کله الف ساکن او مخکې توری فتحه ولري طبیعی مد منځ ته راځي.

-په هغه کلمو کې چې طبیعی مد شتون ولري د هغو له ویلو او اداء کولو سره علاقه پیداکړي.

**اړینه پوهه:**

د مد توري دری دي چې له ( ا – و – ی ) څخه عبارت دي په دې تورو هغه وخت د مد حکم جاري کیږي چې خپله ساکن او د مخکې توري حرکت د همدې توري له جنس څخه وي.

د ( واو ) همجنس ضمه ده او د (ا) همجنس فتحه ده او د (ی) همجنس کسره ده چې د قرآنکریم د ( نُوحیها) په کلمه کې جمع شوي دي.

**د تدریس تګ لاره**: مطالعه، انفرادي، پوښتنه او ځواب

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي مثلاً:<br>څوک کولای شي د تختې پر مخ د کلمې په پای کې سکون ولیکي؟<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست د عنوان ( په قرآني کلمو کې د مد تطبیق ) له لیکلو څخه وروسته زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او لوست په لوړ آواز سره لولي. | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| د لوست وړاندیز ٢٥ دقیقې | زده کوونکي متوجه کوي چې په کوم ځای کې مد تر سره کیږي وروسته یې په هغو زده کوونکو عملی کوي چې نسبتاً د ټولګي په فعالیت کې کمه ونډه اخلي.<br>له زده کوونکو څخه غواړي ترځو لوست په چوپه خوله سره ولولي.<br>له زده‌کوونکو څخه غواړي ترځو خپلو کې کلمې تکرار کړي.<br>د بیلګې په توګه یو زده کوونکی به یې لولي بل به ورته غوږ نیسي بیا به یې دوهم زده کوونکی لولي او هغه بل به ورته غوږ نیسي.<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي ترځو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکي لوست د کتاب له مخې څخه لولي.<br>زده کوونکي د خپل ښوونکي تلفظ ته دقت کوي.<br>زده کوونکي په خپل وار سره د ویلو او غوږ نیولو کړنه |

| | | |
|---|---|---|
| | | تر سره کوي. زده کـــوونکي پـــه دقـت او نرمـی سـره لوست لولي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>په لاندې پوښتنو سره زده کوونکي ارزول کیږي.<br>۱- څوک کولای شي د لوست د اولو دوه کرښو کلمې په صحیح ډول سره تلفظ کړي؟<br>۲- څوک کولای شي د (يُحَاسِبُ) په کلمه کې د مد توری وښیي؟<br>۳- څوک کولای شي د نني لوست دوې کلمې پرتخته ولیکي؟ | زده کـــوونکي پـــه خپـــل وار ســـره د تختـــې لـــه مخـــې کلمـی لـولي او پـر تخته يې ليکي. زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو د نني لوست کلمې دوه ځله په کتابچو کې ولیکي. | |

**لوست:** لسم

## سرليک: په قرآني کلمو کې د طبيعي مد تطبيق

مخ:

وخت: يو درسي ساعت (٤٥) دقيقې

موخې: زده کوونکي باید:

-د مد توري وپيژني او پردې وپوهيږي چې هر کله (ی) ساکنه او مخکې ترينه کسره وي طبيعی مد منځ ته راځي.

- طبيعي مد په کلمو کې تشخيص کړی شي.

- د طبيعي مد له اداء کولو سره علاقه پيداکړي.

**اړينه پوهه:**

مد په لغت کې مطلق ډيروالي ته وايي لکه څرنگه چې الله جل جلاله په دې قول کې ويلي (وَيُمْدِدْكُمْ بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ)[نوح-١٢]

او په اصطلاح کې په دری گونو تورو (ا-و-ی) سره د آواز کش کول دي.

**د مد پيژندنه:** د مد پيژندنه د لاس د گوتو په خلاص والي سره کيږي چې بندې وي دوې گوتې د دوو الفو او دری گوتې د دريو الفو په اندازه او د ځينو قاريانو له قوله مد تر پنځو الفونو پورې اوږديږي.

**د تدريس تگ لاره:** مطالعه، انفرادي، پوښتنه او ځواب

**مرستندويه توکي:** کتاب،کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| ســـريزه٥ دقيقې | ښـاغلی ښـوونکی لـه احـوال پوښـتنې، ټـولگي تنظيمولـو او حاضـری اخيسـتلو څخـه وروسته مخکينی لوست ارزوي مثلاً:<br>څوك كولای شي چې د تختې پر مخ د کلمې په پای کې د سکون مثال وليکي؟<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست عنوان ( په قرآني کلمو کې د مد تطبيق ) له ليکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په لوړ آواز سره لولي.<br>په خپل تلفظ سره د زده کوونکو پام ديته رااړوي چې مـد پـه کـوم وخـت کـې مـنځ تـه راځي. | زده کوونکي لوسـت تـه غوږ نيسي. |
| د لوســـت وړانـــديز ٢٥ دقيقې | وروسته لوست د دوو زده کوونکو په واسطه چې د ټـولگي پـه فعاليـت کـې کمـه ونـډه اخلي لولي او غلطي يې اصلاح کوي.<br>له زده کوونکو څخه غواړي ترڅو لوست په خپلو کې تکرار کړي په داسې ډول چې يو زده کوونکی يې ولولي او بل ورته غوږ ونيسي او بيا دوهم زده کوونکی لوست ولولي او اول ورته غوږ کيږدي. | زده کـوونکي د لوسـت کتاب له مخې لولي.<br>زده کـــــــوونکي د ښوونکي تلفظ ته توجـه کوي.<br>زده کـوونکي پـه خپـل |

| | | |
|---|---|---|
| | | وار سـره دویلـو او غـوږ نیولـو فعالیـت تـر سـره کوي.<br>زده کوونکي لوسـت پـه ځیرکتیـا او نرمـی سـره لولي. |
| ۱۰ دقیقې | زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱-څوک کولای شي د اولو دوو کرښو کلمې په ښه بڼه تلفظ کړي؟<br>۲-څوک کولای شي د ( خالدین ) په کلمه کې مد وښیي؟<br>۳-څوک کولای شي د نن ورځې دوې کلمې پر تخته ولیکي؟ | زده کوونکي پوښتنو تـه ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو د نني لوست کلمې په کتابچو کې ولیکي. | |

**لوست**: **یوولسم**

## سرلیک: په قرآني کلموکې د طبیعي مد تطبیق

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (٤٥) د قیقې

موخې: زده کوونکي باید:

-د مد توري وپیژني او و پوهیږي چې هر کله واو ساکن او مخکې ترینه ضمه وي طبیعي مد رامنځ ته کیږي.

-په کلمو کې طبیعی مد مشخص کړی شي.

- د طبیعي مد له ښه ویلو او اداکولو سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:**

د مد ډولونه: مد په دوه ډوله دی: اصلي مد او فرعي مد. اصلی مد هغه مد دی چې له ( ء، و، ی ) حرفونو څخه وروسته سکون نه وي راغلی د بیلګې په توګه (اَلْعَالَمِينَ، فِيهَا، نُوحِي) دې مد ته طبیعي مدهم ویل کیږي.

ځکه هغه څوک چې د سالمې طبعې لرونکی وي په اندازه د دې چې یو الف دوه حرکته دی د دوو حرکتو په اندازه دګوتې کږول او پورته کول دي.

فرعي مد په څلور ډوله دی:

١- متصل مد: هغه دی چې د مد توری او سبب یې په یوه کلمه کې راغلی وي، لکه: جَاء

٢- منفصل مد: هغه دی چې د مد توری په یوه کلمه کې او سبب یې په بله کلمه کې وي مثلاً: بِمَآ أُنزِلَ.

٣- عارضي مد: هغه دی چې د مد په توري سره د وصل او وقف په حالت کې سکون نه وي ثابت شوی مثال یې لکه: نَسْتَعِينُ چې د وقف په حالت کې (ن) ساکن واقع شوی دی له همدې وجې ورته عارضي ویل کیږي. حال داچې په اصل کې نون متحرك دی.

٤- مد لازمي: هغه دی چې د مد په توري سره سکون د وقف او وصل په حالت کې ثابت شوی وي لکه: (دآبة). او د نومونې وجه یې دا ده چې د وقف او وصل په حالت کې د هغې سکون لازمي دی.

**د تدریس کړنلاره:** مطالعه، انفرادي، سوال او ځواب

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
| --- | --- | --- |

| | | |
|---|---|---|
| ســــريزه۵ دقيقې | ښاغلی ښـوونکی لـه احـوال پوښـتنې، ټولګي تنظیمولـو او حاضـری اخیسـتلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي لکه:<br>څوک کولای شي چی د تختې پر مخ د کلمې په پای کې د سکون مثال ولیکي؟<br>ښاغلی ښوونکی پر تختې باندې د نوي لوست عنوان (په قرآني کلمو کې د مـد تطبیـق) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونونه را اړوي او لوسـت پـه لـوړ آواز سره لولي. | زده کوونکي لوسـت تـه غوږ نیسي. |
| د لوســت وړانــدیز ۲۵دقیقې | له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله مطالعه کړي.<br>وروسته په خپل تلفظ سره د زده کوونکو پام دیته رااړوي چې په کوم شـکل سـره مـد را منځ ته کیږي.<br>بیا د دوو زده کوونکو په واسطه چې د ټولګي په فعالیت کې کمـه ونـډه اخلـي لوسـت لولي او غلطی یې اصلاح کوي.<br>له زده کوونکو څخه غواړي ترڅو لوست په خپلو کې تکرار کړي په داسې ډول چې یو زده کوونکی یې ولولي او بل ورته غوږ ونیسي او بیا دوهم زده کوونکی لوست ولولي او اول ورته غوږ کیږدي. | زده کـوونکي لوسـت د کتاب له مخې لولي.<br>زده کـــــــــوونکي د ښوونکي تلفظ ته توجه کوي.<br>زده کـوونکي پـه خپـل وار سـره دویلـو او غـوږ نیولـو فعالیـت تـر سـره کوي.<br>زده کوونکي لوسـت پـه ځیرکتیـا او نرمـی سـره لولي. |
| ۱۰ دقیقې | زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>وروسته د لوست کلمې د تختې پر مخ لیکي او له څو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل وار سره یوه کلمه نورو ته ولولي او پر تخته یې ولیکي. | زده کـوونکي پـه خپـل وار سـره د تختـې لـه مخـې کلمـې لـولي او پرتخته یې لیکي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱-څوک کولای شي د اولو دوو کرښو کلمې په ښه بڼه تلفظ کړي؟<br>۲-څوک کولای شي د (کفروا) په کلمه کې د مد توری وښیي؟<br>۳-څوک کولای شي د نن ورځې د لوست دوې کلمې پر تخته ولیکي؟ | زده کوونکي پوښتنو تـه ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو د نني لوست کلمې په کتابچو کې ولیکي. | |

## لوست: دوولسم

## سرلیک: په توروکې د تنوین تمرین

مخ:

وخت: یو درسی ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

-تنوین وپیژني.

-تنوین په صحیح ډول سره تلفظ کړی شي

- د تنوین له صحیح ویلو سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:** تنوین څلور حکمونه لري.

١- اظهار

٢- اخفاء

٣- ادغام

٤- اقلاب

تنوین له دوو زورو، دوو پیښو او دوو زیرو څخه عبارت دی او دری واړه د نون غږ منځ ته راوړي.

تنوین د تجوید له نظره د څلورو حکمونو در لودونکی دی چې عبارت دي له: اظهار، اخفاء، اقلاب او ادغام څخه.

اظهار په لغت کې د ښکاره کیدلو په معنی دی چې یو له د غو شپږو تورو (( ء، ها، ع، حا، غ، خا)) وروسته ورڅخه راشي مثال یې لکه ( (شَهِيدٌ عَلَى مَا تَعمَلُونَ)) [یونس -٢٦]

اخفاء په لغت کې د پټولو په معنی ده او د تجوید په اصطلاح کې پټوالی د تنوین دی تر شا د یو د پنځلسو تورو څخه مثال یې ((عَذَابًا شَدِيدًا)) [النمل -٢١]

اقلاب په لغت کې د بدلولو په معنا سره دی او د تجوید په اصطلاح کې بدلول د تنوین دي په ( میم) سره دا په هغې وخت کې چې وروسته له تنوین څخه د (ب) توری راشي. مثال یې: (( الیم بما )).

ادغام په لغت کې داخلیدلو ته ویل کیږي او د تجوید په اصطلاح کې د یو توري داخلول دي په بل توري کې مثال یې: ( (إِذْ ذَّهَبَ)) [الانبیا- ٨٧] اول ذال په دویم ذال کې مدغم شوی او همدا شان د نون ساکن او تنوین داخلول په توري کې تر سره کیږي. مثال یې (رَعْدٌ وَبَرْقٌ)) ( (ظلمتٍ لا )) [البقره - ١٩] په هغې وخت کې چې وروسته له تنوین څخه یو د ادغام له تورو څخه راشي. د ادغام شپږ توري دي چې د (( یرملون )) په کلمه کې جمع شوي دي.

ادغام په دوه قسمه دی.

١-ادغام سره له غنې: چې څلور توري لري (ی،م، ن، و).

٢-ادغام بې له غنې دوه توري لري: (ل، ر ) په ادغام کې له غنې سره د پوزې له خیشوم څخه استفاده کیږي.

یعنی غږ له هغه ځایه راویستل کیږي او په ادغام بدون له غنې کې له خیشوم څخه استفاده نه کیږي.

**د تدریس کړنلاره:** پوښتنه او ځواب، ډلییز، انفرادي او مطالعه.

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینۍ لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي د (کفروا) په کلمه کې د مد توری وښیي؟ | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| د لوست وړاندیز ۲۵ دقیقې | د نوي لوست د عنوان (په تورو سره د تنوین تمرین) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب آواز سره لولي.<br>وروسته لوست د حرکتونو سره په تخته لیکي او یو ځل یې بیا لولي.<br>بیا شپږ زده کوونکي تختې ته را غواړي هر یو یوه یوه کرښه لوست لولي او غلطۍ یې اصلاح کوي او تشویق کوي یې.<br>بیا زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره ولولي او خپله ټولګی کنترولوي. | زده کوونکي سپارل شوي د ندې تر سره کوي.<br>لوست په چوپه خوله سره مطالعه کوي.<br>زده کوونکي ډلییز کار تر سره کوي. |
| ۱۰ دقیقې | وروسته زده کوونکي په ډلییز کار سره ګماري ترڅو لوست په اوو دقیقو کې په کتابچو کې ولیکي او خپلو ټولګیوالو ته یې وښیي او اصلاحات رامنځ ته کوي.<br>مخکینۍ لیکنه له تختې څخه پاکوي وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل وار سره تختې ته راشي او د خپلې کتابچې له مخې څلور تنوین لرونکي توري پر تخته ولیکي. | زده کوونکي لوست ته پام اړوي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي ووایي چې نن مو کوم حرکت ولوستلو؟<br>۲- څوک کولای شي د تختې پر مخ پنځه توري ولیکي او تنوین ورباندې اضافه کړي؟<br>۳- څوک کولای شي ووایي چې تنوین څه معنی لري ؟ | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو نننی لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

**لوست: دیارلسم**

**سرلیک: د دوو زورو د تنوین تطبیق**

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- دوه زوره (تنوین) وپیژني.

- د تنوین حرکت ( دوه زوره ) په کلمو کې تطبیق کړی شي.

-په کلمو کې د تنوین د دوو زورو د ویلو او اداکولو سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:** د مخکې لوست تابع

**د تدریس کړنلاره:** مطالعه، انفرادي، پوښتنه او ځواب

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوك کولای شي ووایي تنوین څه معنی لري؟ | زده کوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست وړاندیز ٢٥ دقیقې | د نوي لوست د عنوان ( د دوو زورو د تنوین تطبیق ) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره لولي.<br>وروسته له زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر یو په خپل ځای کې ودریږي او دوه کلمې لوست د کتاب له مخه ولولي او د هغوی غلطۍ اصلاح کوي او تشویق کوي یې.<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو لوست په چوپه خوله سره ولولي او د لوست اول څلور کلمې سره له حرکتونو پر خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>او د لوست څو آخرې کلمې د تختې پر مخ لیکي او وروسته یې په زده کوونکو تمرین او تکرار کوي.<br>بیا له څو زده کوونکوڅخه غواړي ترڅو هر یو په خپل وار سره کلمه دویم ځل د تختې پر مخ ولیکي. | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>هغه زده کوونکي چې په فعالیتونو ګمارل شوي فعالیتونه په ښه توګه سرته رسوي<br>زده کوونکي فعالیت تر سره کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه**:<br>۱- څوک کولای شي د لوست دری کلمې پر تخته ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست اول څلور کلمې ووایي؟<br>۳- څوک کولای شي ووایي چې تنوین کومو حرکتونو ته ویل کیږي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو لوست یوځل پر کتابچو کې ولیکي. | |

## لوست: څوارلسم

## سرليک: د دوو زيرونو د تنوين تطبيق

مخ:

وخت: يو درسی ساعت ٤٥ دقيقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د دوه زیرو نو تنوین وپیژني.

- د دوو زیرونو د تنوین حرکت په کلمو کې په صحیح شکل سره تطبیق کړی شي.

-په کلمو کې د دوو زیرونو د تنوین د ویلو او اداکولو سره علاقه پیداکړي.

**اړینه پوهه:** د مخکیني لوست تابع.

**د تدریس کړنلاره:** مطالعه، انفرادي، پوښتنه او ځواب

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقيقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظيمولو او حاضرۍ اخيستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي ووايي چې زمونږ د مخکيني لوست سرليک څه شی ؤ ؟ | زده کوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست وړاندیز ۲۵ دقيقې | د نوي لوست د عنوان ( د دوو زيرونو د تنوین تطبیق ) له ليکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب غږ سره لولي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر يو په خپلو ځايونو کې ودريږي او يويوه کرښه لوست د کتاب له مخې ولولي او غلطي يې اصلاح کوي.<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره ولولي او د لوست اولې څلور کلمې سره له حرکتونو په خپلو کتابچو کې و ليکي.<br>د لوست څو وروستۍ کلمې پر تخته ليکي او په زده کوونکو يې تکرار او تمرين کوي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر يو په خپل وار سره تختې ته راشي او يوه يوه کلمه د دويم ځل لپاره وليکي بلکې د تنوين په ليکلو کې به ورسره مرسته کوي. | زده کوونکي لوست ته غوږ نيسي.<br>هغه زده کوونکي چې په فعاليت ګمارل شوي خپل فعاليت په غوره توګه تر سره کوي.<br>زده کوونکي فعاليت تر سره کوي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي د لوست اول څلور کلمې ولولي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست اولې درې کلمې پر تخته وليکي؟<br>۳- څوک کولای شي ووايي چې تنوين کومو حرکتونو ته ويل کيږي؟ | زده کوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** زده کوونکو ته ښوونه کيږي ترڅو لوست په خپلو کتابچو کې وليکي. | |

## لوست: پنځلسم

## سرلیک: د دوو پیښونو د تنوین تطبیق

**مخ:**

وخت: یو درسی ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د دوو پیښونو تنوین وپیژني.

-په کلمو کې د دوو پیښو تنوین په صحیح ډول سره تطبیق کړی شي.

-په کلمو کې د دوو پیښو د تنوین له اداکولو او ویلو سره علاقه پیداکړي.

**اړینه پوهه:** د مخکې لوست تابع.

**د تدریس کړنلاره:** مطالعه، انفرادي، پوښته او ځواب

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي د تختې په مخ د مخکینی لوست درې کلمې ولیکي او د زیر تنوین ورکړي؟ | زده کوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست وړاندیز ۲۵دقیقې | د نوي لوست د سرلیک ( د دوو پیښو د تنوین تطبیق ) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب غږ سره لولي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو په خپل وار سره په خپلو ځایونو کې و دریږي او څلور کلمې یو ځلې د کتاب له مخې ولولي په عین وخت کې د هغوی غلطۍ اصلاح او تشویق کوي یې.<br>او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره ولولي او څلور اولې کلمې سره له حرکتونو په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>د لوست آخري څو کلمې د تختې پر مخ لیکي او وروسته هغه پر زده کوونکو تمرین او تکرار کوي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر یو په خپل وار سره راشي او یوه یوه کلمه د تختې پر مخ ولیکي البته د کلمو په لیکلو کې دې ورسره مرسته وشي. | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>هغه زده کوونکي چې په فعالیتونو ګمارل شوي خپل فعالیتونه په ښه ډول سره سرته رسوي.<br>زده کوونکي فعالیت تر سره کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي د لوست درې کلمې پرتخته ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست اولې پنځه کلمې ووایي؟<br>۳- څوک کولای شي ووایي چې تنوین د کوم توري غږ ورکوي؟ | زده کوونکي فعالیت تر سره کوي.<br>زده کوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

**لوست**: شپاړلسم

## سرلیک: په قرآني کلموکې د شد ( ّ ) تطبیق

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې.

موخې: زده کوونکي باید:

- شد وپیژني.

-په کلموکې د شد حرکت په ښه ډول سره تطبیق کړی شي.

-په کلموکې د شد له ویلو او اداکولو سره علاقه پیداکړي.

**اړینه پوهه:**

دشد توري هغو تورو ته ویل کیږي چې د هغې د پاسه د شد ( ّ ) علامه وي او په حقیقت کې هغه توری چې مشدد وي دوه توري دي چې اول یې ساکن او دویم یې متحرك وي مثال یې: ( من یقول، من ی، یقول ) نو مشدد توری باید دروند تلفظ شي ترڅو د دوو تورو حق ادا شي، شد د تورو او کلمو په معنی کې غوره رول لري.

مثال یې: ( الا، الی ) او له په معنی د مگر او دوهمه د طرف په معنی سره راځي.

**د تدریس کړنلاره:** مطالعه، انفرادي، پوښتنه او ځواب.

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولگي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوك کولای شي ووایي زمونږ د مخکیني لوست سرلیك څه شی ؤ ؟ | زده کوونکی پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست وړاندیز ٢٥ دقیقې | د نوي لوست د عنوان ( قرآني کلموکې د شد ( ّ ))تطبیق له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب آواز سره لولي البته په داسې توگه چې په کلموکې د دوه تورو حق ادا شي.<br>وروسته له څو زده کوونکو غواړي ترڅو هر یو په خپل ځای کې ودریږي او د لوست څلور کلمې د کتاب له مخه ولولي. غلطی یې اصلاح کوي او تشویق کوي یې.<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو لوست په چوپه خوله سره مطالعه کړي او د لوست اولې پنځه کلمې سره له حرکتونو په خپلو کتابچوکې ولیکي.<br>د لوست څو وروستۍ کلمې د تختې پر مخ لیکي او په زده کوونکو یې تکرار او تمرین کوي.<br>او وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر یو په خپل وار سره یوه کلمه د | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>هغه زده کوونکي چې په فعالیت سره گمارل شوي دي خپل فعالیت په ښه توگه تر سره کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | شد له حرکت سره ولیکي. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه**:<br>۱- څوک کولای شي د لوست څلور کلمې د تختې پر مخ ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست او له کرښه ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي په ( انک) کلمه کې د شد علامه وښيي؟ | زده کـوونکي فعالیـت سرته رسوي.<br>زده کوونکي پوښتنوته ځواب ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو لوست یوځل په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

**لوست**: **اوه لسم**

## سرليک: د بقرې سورت د ۱ - ۲ آيتونو تلاوت

مخ:

وخت: يو درسي ساعت ٤٥ دقيقې

موخې: زده کوونکي بايد:

- له بقرې سورت سره آشنايي پيداکړي.

- د لوست کلمې په صحيح ډول سره تلفظ کړ ی شي.

-د لوست د کلمو له صحيح ويلو سره علاقه پيداکړي.

**اړينه پوهه:**

د بقرې سورت په مدينه منوره کې نازل شوی پرته له ۲۸۱ آيت څخه ( (وَاتَّقُواْ يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللّهِ ثُمَّ تُوَفَّى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لاَ يُظْلَمُونَ)) [ سوره بقرة - ۲۸۱] چې هغه د حجة الوداع په کال په منی کې نازل شوی دی، دا سورت ۲۸٦ آيتونه او څلويښت رکوع ګانې لري د تلاوت يا مصحف له مخې دوهم او د نزول له مخې اته اويايم سورت دی.

( الم )د قرآنکريم له مقطعاتو تورو څخه دي له الله ﷻ او پيغمبر (ﷺ)څخه پرته بل څوک د هغه په معنی سره نه پوهيږي بلکې دا د الله ﷻ او پيغمبر (ﷺ) ترمنځ يو راز دی بنا پريو مصلحت سره يې معنا نده څرګنده کړې کومه معنا چې له بعضو علماوو څخه نقل شوې ده دا يو تمثيل، تنبيه او تسهيل دی نه دا چې هغه د الله ﷻ اراده ده.

د تجويد له مخې څخه د ( الم ) په تورو کې فرعي مد شتون لري چې هغه ته حرفي مثقل مد هم ويل کيږي.

**د تدريس تګ لاره:** مطالعه، انفرادي.

**مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده کوونکو فعاليت |
|---|---|---|
| سريزه ٥ دقيقې | ښاغلی ښوونکی لـه احـوال پوښـتنې، ټـولګي تنظيمولـو او حاضـرۍ اخيسـتلو څخه وروسته مخکينی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي ووايي زمونږ د مخکيني لوست سرليک څه شی ؤ ؟ | زده کـوونکي لوسـت ته غوږ نيسي.<br>زده کوونکي لوسـت د کتاب له مخې وايي. |

| | | |
|---|---|---|
| د لوست وړاندیز ۲۵ دقیقې | د نوي لوست د عنوان (د بقرې سورت د۱-۲ ایتونوتلاوت] له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره لولي. وروسته زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو لوست په چوپه خوله سره مطالعه کړي او خپله ټولګی کنترولوي او د دوی ستونزې حل کوي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر یو په خپل وار سره لوست په مناسب غږ سره و لولي، ښوونکی ورته غوږ نیسي او غلطی یې اصلاح کوي.<br>وروسته له یو شمیر هغو زده کوونکو څخه چې په ټولګیوال فعالیت کې یې ونډه نده اخیستې غواړي ترڅو هر یو لوست ولولي.<br>د دې فعالیتونو په لړکې زده کوونکي هڅوي او غلطي یې په مهربانۍ اوحوصلې سره اصلاح کوي.<br>وروسته د مقطعاتو توري ( الم ) له مد او شد سره پر تخته لیکي او پر زده کوونکو یې تمرین کوي. | زده کوونکي د ښوونکي تلفظ ته توجه کوي.<br>زده کوونکي خپل فعالیت تر سره کوي.<br>زده کوونکي د ( الم )له توري وروسته پر ښوونکي پسې په ښه ډول تلفظ کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي ( الم ) په ښه ډول سره تلفظ کړي؟<br>۲- څوک کولای شي لوست په صحیح ډول سره ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي ووایي زمونږ د نننی ورځې د لوست آیتونه د کوم سورت مربوط ؤ؟ | زده کوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته دې ښوونه وشي ترڅو نننی لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: اتلسم

## سرلیک: د بقرې سورت د(۳) آیت تلاوت

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره آشنا شي.

- د لوست کلمې په ښه توګه تلفظ کړ ی شي.

-د لوست له صحیح ویلو سره علاقه پیداکړي.

**اړینه پوهه:**

**رسول اکرم** (ﷺ) د بقرې سورت په اړه ډېرې ویناوې کړې دي د بیلګې په توګه دوه حدیثونه را نقل کیږي:

-عن ابی هریرة قال: قال رسول الله (ﷺ) لا تجعلوا بیوتکم مقابرا ان الشیطان یفر من البیت الذي یقرا فیه سورة البقرة. (رواه مسلم)

له ابی هریره څخه روایت دی چې رسول اکرم (ﷺ) فرمایلي دي له خپلو کورونو څخه هدیرې مه جوړه وئ په تحقیق سره له هغه کور څخه چې په هغې کې د بقرې سورت ویل کیږي شیطان تښتي.

-عن ابن عباس قال: بینما جبریل (علیه السلام) قاعد عند النبی (ﷺ) سمع نقیضاً من فوقه فرفع رأسه فقال هـذا بـاب مـن السـماء فـتح الیوم لم یفتح قط إلا الیوم فنزل منه ملك فقال هذا ملك نزل الی الأرض لم ینزل قط إلا الیوم فسلم وقال أبشر بنورین أوتیتهما لم یؤتهما نبی قبلك فاتحة الکتاب وخواتیم سورة البقره لن تقرأ بحرف منهما إلا أعطیته ( رواه مسلم ).

له حضرت ابن عباس څخه روایت دی چې یو ورځ رسول اکرم (ﷺ) جبرائیل (علیه السلام) سره ناست ؤ جبرائیل (علیه السلام) له پاسه غږ واوریده سر یې پورته کړ او وروسته یې وویل دا یوه دروازه ده د آسمان له دروازو څخه چې نن ورځ خلاصه ده له نن څخه پرتـه بـل هیڅ وخت نه ده خلاصه شوې وروسته له هغې دروازې څخه یوه ملائکه لاندې راغله جبرائیـل وفرمایـل دا هغـه ملائکـه ده چې ځمکې ته راغله مخکې له دینه هیڅ وخت نه وه راغلې وروسته له هغې څخه ملایکې رسول (ﷺ) ته سلام واچاوه او ورتـه ویـې ویل زه تاته زیری درکوم به دوونورونو باندې چې تاته درکړل شوي او بل هیڅ پیغمبر ته مخکې له تاته نه وو ورکړل شوي چې هغه دوه نورونه عبارت دي له فاتحة الکتاب او د بقرې سورت له وروستني آیتونو څخه، هیڅکله یو توری له دوی څخه نـه ویـل کیـږي مګر په مقابل کې ورته ثواب ورکول کیږي.

**د تدریس تګ لاره: سوال او ځواب انفرادي، مطالعه.**

**مرستندویه توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.**

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| ســـــــریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ډولګي تنظیمولـو او حاضـرۍ اخیسـتلو څخـه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي ووایي زمونږ د مخکیني لوست سرلیک څه شی ؤ؟ | زده کـوونکي لوسـت ته غوږ نیسي.<br>زده کوونکي لوسـت د کتاب له مخې وایي. |

| | | |
|---|---|---|
| د لوست ورانديز ۲۵ دقيقې | د نوي لوست د عنوان (دبقرې سورت د(۳)ايت تلاوت )له ليکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او د لوست اوله برخه کلمه په کلمه لولي او زده کوونکي يې ورپسې تکراروي.<br>وروسته زده کوونکي د دوهم ځل لپاره پرې مکلف کوي ترڅو لوست جمله په جمله ښوونکي پسې تکرار کړي: په دريم ځل سره د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي. وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره ولولي او خپله ټولګی کنترولوي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هر يو په خپل وار سره لوست په مناسب آواز ولولي. ښوونکی د هغوی لوست ته غوږ نيسي او غلطی يې اصلاح کوي.<br>وروسته له هغو زده کوونکو څخه چې په ټولګيوال فعاليت کې يې کمه ونډه اخيستې وي لوست لولي. د دې فعاليت په لړ کې زده کوونکي تشويق کوي او غلطی يې په حوصله او مهرباني سره اصلاح کوي. | زده کوونکي د ښوونکي تلفظ ته دقت کوي.<br>زده کوونکي خپل فعاليت تر سره کوي.<br>زده کوونکي د ( الم ) توري وروسته پر معلم پسې په ښه ډول تلفظ کوي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>وروسته د لوست د وروستني چوکات کلمې پر تخته ليکي او په زده کوونکو يې تمرين کوي.<br>۱- څوک کولای شي د لوست دريم پړاو ولولي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست دويم پړاو ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟<br>٤- څوک کولای شي د ( الذين ) کلمه پر تخته وليکي؟ | زده کوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کيږي ترڅو د نننۍ ورځې لوست لس ځله ولولي. | |

**لوست**: **نولسم**

**سرلیک**: **د بقرې سورت د(۴) آیت تلاوت**

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره آشنایي پیدا کړي.
- د لوست کلمې په صحیح شکل سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره علاقه پیداکړي.

**اړینه پوهه**: د مخکیني لوست سره اړیکې لري.

**د تدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي مثلاً:<br>څوک کولای شي د (الَّذِينَ) کلمه پر تخته ولیکي ؟ | زده کوونکي لوست ته ښه غوږ نیسي.<br>زده کوونکی د ښوونکي په تعقیب سره لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخه لولي. |
| د لوست وړاندیز ٢٥ دقیقې | د نوي لوست د عنوان (دبقرې سورت د ٤ ایت تلاوت) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته رااړوي او د لوست اوله برخه په خپله لولي او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو په ده پسې یې تکرار کړي.<br>وروسته زده کوونکي مکلف کوي ترڅو دویمه برخه د ښوونکي په تعقیب جمله په جمله تکرار کړي په دریم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابوته اړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر یو په خپل وار سره په خپل ځای کې لوست به مناسب غږ سره ولولي او ښوونکی د هغوی لوست ته غوږ نیسي او غلطی یې اصلاح کوي. وروسته له هغو زده کوونکو څخه چې په ټولګیوال فعالیت کې کمه ونډه اخلي غواړي تر څو هر یو لوست ولولي.<br>وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره ولولي اوښونګی | زده کوونکی د ښوونکی په تعقیب سره لوست جمله په جمله تکراروي.<br>زده کوونکي خپلو کتابونو ته پام اړوي.<br>زده کوونکي خپلو کتابوبوته پام اړوي.<br>زده کوونکي خپل فعالیتونه تر سره کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | خپله ټولګی کنترولوي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>بیا د لوست د وروستي چوکات کلمې د تختې پر مخ لیکي او پر زده کوونکو یې تمرین کوي. د دې فعالیت په ترڅ کې زده کوونکي تشویق کوي او غلطي یې په ډېرې مهربانۍ او حوصلې سره اصلاح کوي. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست دریم پړاو ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟<br>٤- څوک کولای شي د ( اُنزِلَ ) کلمه پر تخته ولیکي؟ | زده کوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کيږي ترڅو نننی لوست لس ځله ولولي. | |

**لوست**: **شلم**

**سرليک**: **د بقرې سورت د(۵) آيت تلاوت**

مخ:

وخت: يو درسي ساعت ٤٥ دقيقې

موخې: زده کوونکي بايد:

- د بقرې له سورت سره آشنايي پيدا کړي.
- د لوست کلمې په ښه ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحيح ويلو سره علاقه پيداکړي.

**اړينه پوهه:** د دې لوست په (اُولٰئِکَ) کلمه کې متصل مد راغلی دی ځکه الف د مد توری او سبب يې چې(ء) ده چې په يوه کلمه کې راغلي دي.

په ځينو قرآني کلمو کې داسې توري وجود لري چې په قرآني رسم الخط کې ليکل کيږي خو تلفظ پرې نه کيږي او هيڅ ډول حرکت هم نلري لکه: د (ی) توری (هُدًی) کلمه کې او د (و) توری (اُولٰئِکَ) کې او د ( الف ) توری په (الْمُفْلِحُونَ ) کلمه کې.

**د تدريس کړنلاره:** پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه

**مرستندويه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سريزه ۵ دقيقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظيمولو او حاضرۍ اخيستلو څخه وروسته مخکينی لوست ارزوي.<br>څوك کولای شي د (الّذِينَ ) کلمه پر تخته وليکي؟ | زده کوونکي لوست ته ښه غوږ نيسي.<br>زده کوونکي په ښوونکي پسې لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخې لولي. |
| د لوست وړانديز ۲۵ دقيقې | د نوي لوست د عنوان ( دبقرې سورت د ۵ايت تلاوت) له ليکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او د لوست او له برخه کلمه په کلمه لولي او زده کوونکي يې وريسې تکراروي.<br>وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي. بيا له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر يو په خپل وار سره په خپلو ځايونو کې د لوست پراوونه په مناسب غږ سره ولولي او ښوونکی د هغوی لوست ته غوږ نيسي او غلطی يې اصلاح کوي.<br>وروسته له هغو زده کوونکو څخه چې په ټولګيوال فعاليت کې کمه ونډه اخلي غواړي ترڅو هر يو لوست ولولي. | زده کوونکي لوست جمله په جمله د ښوونکي په تعقيب پسې تکراروي.<br>زده کوونکي خپلو کتابونو ته پام اړوي.<br>زده کوونکي د ښوونکي نه وروسته لوست جمله په جمله |

| | | |
|---|---|---|
| | وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره ولولي: خپله ټولگی کنترولوي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>بیا د لوست د اخیري چوکات کلمې پرتخته لیکي او په زده کوونکو یې تمرین کوي.<br>د دې فعالیت په ترڅ کې زده کوونکي تشویق کوي او هغه زده کوونکي چې غلطی وکړي په ډیره مهربانۍ او حوصلې سره د هغوی غلطۍ اصلاح کوي. | تکرار وي.<br>زده کوونکي خپلو کتابوبوته پام اړوي.<br>زده کوونکي خپل فعالیتونه تر سره کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه**:<br>۱- څوک کولای شي د (اُولٰئِکَ) کلمه پر تخته ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست دریم پړاو ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟<br>٤- څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو نننی لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: یو ویشتم

## سرلیک: د بقرې سورت د (۲) آیت تلاوت

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره آشنایي پیدا کړي.
- د لوست کلمې په صحیح ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره علاقه پیداکړي.

**اړینه پوهه:**

د دې لوست په (سَوَاءٌ) کلمه کې متصل مد راغلی ځکه د مد توری چې ( الف ) دی او سبب یې چې (ء) ده په یوه کلمه کې راغلي دي.

- د (ءَأَنذَرْتَهُمْ) او (تُنذِرْهُمْ) په کلمو کې نون سره اخفا کیږي ځکه چې وروسته له ساکن نون څخه په دواړو کلمو کې (ذ) د إخفا توری راغلی دی.
- د (سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ) په کلمه کې (ع) توری وروسته له تنوین څخه راغلی نو دلته اظهار کیږي او د (ع) توری له حلقي تورو څخه دی هرکله چې له نون ساکن یا تنوین څخه وروسته یو له شپږو حلقي تورو څخه راشي هغلته اظهار را منځ ته کیږي.
- شپږ حلقي توري عبارت دي له ( ء، ح، خ، ع، غ، هـ ) چې په لاندې بیت کې جمع شوي دي.

حرف حلقي شش بود ای نور عین. ء، ها و حا و خا و عین و غین

**د تدریس کړنلاره:** پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي د (أُولَٰئِكَ) کلمه پر تخته ولیکي؟ | زده کوونکي لوست ته ښه غوږ نیسي.<br>زده کوونکي د ښوونکي په تعقیب لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخې لولي. |

| | | |
|---|---|---|
| د لوست ورانديز ۲۵ دقیقې | د نوي لوست د عنوان (دبقرې سورت د ٦ ایت تلاوت) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپل ځان ته را اړوي او د لوست اول پړاو کلمه په کلمه په خپلو کې لولي او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو د هغه په تعقیب سره یې تکرار کړي.<br>وروسته زده کوونکي د ښوونکي په تعقیب سره دویم پړاو جمله په جمله تکراروي په دریم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي.<br>وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره مطالعه کړي او خپله د زده کوونکو ستونزې حلوي.<br>بیا د لوست د اخیري چوکات کلمې د تختې پر مخ لیکي او پر زده کوونکو یې تمرین کوي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر یو په خپل وار په مناسب غږ سره د لوست پړاوونه ولولي.<br>ښوونکی ورته غوږ نیسي او د هغوی غلطۍ اصلاح کوي.<br>وروسته له هغو زده کوونکو څخه چې په ټولګیوال فعالیت کې کمه ونډه اخلي غواړي ترڅو هر یو لوست ولولي.<br>د دې فعالیت په ترڅ کې زده کوونکي تشویق کوي او غلطۍ یې په ډېره حوصله او مهربانۍ سره اصلاح کوي. | زده کوونکي د ښوونکي څخه وروسته لوست جمله په جمله تکراروي.<br>زده کوونکي خپلو کتابونو ته پام اړوي.<br>زده کوونکي لوست تکرار او تمرین کوي.<br>زده کوونکي خپل فعالیتونه تر سره کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي د (ءَأَنذَرۡتَهُمۡ) کلمه پر تخته ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست دریم پړاو ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟<br>٤- څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو نننی لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: دوه ویشتم

## سرلیک: د بقرې سورت د(۷) آیت تلاوت

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره آشنا شي.
- د لوست کلمې په صحیح ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره علاقه پیداکړي.

**اړینه پوهه:**

په (وَعَلَى اَبْصَارِهِمْ) کلمه کې منفصل مد راغلی دی ځکه ( الف ) د مد توری په یوه کلمه کې او سبب د مد چې (ء) ده په بله کلمه کې راغلی دی.

د منفصل مد حکم: د حفص په نزد منفصل مد له څلور حرکتونو څخه تر پنځو حرکتونو پورې کش کیږي.

په داسې حال کې چې د نورو امامانو په نزد قصر (د دوو حرکتونو ) قرائت دی د دوو ګوتو په حرکت سره.

د (اَبْصَارِهِمْ) کلمې په تلاوت کې دې کوښښ وشي ترڅو د (ب) توری د (پ) په څیر تلفظ نشي ځکه ډیر هغه ماشومان چې د قرآنکریم په زده کړه پیل کوي سره له دې چې ( ب او پ توري پیژني خو د تلاوت پر وخت د دوی ترمنځ توپیر نشي کولای.

**د تدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوك کولای شي د (اُولٰئِكَ) کلمه پر تخته ولیکي؟ | زده کوونکي لوست ته ښه غوږ نیسي.<br>زده کوونکي د ښوونکي په تعقیب لوست د کتاب له مخې کلمه په کلمه لولي. |
| د لوست وړاندیز ۲۵ دقیقې | ښوونکی د نوي لوست د عنوان (دبقرې سورت د ۷ ایت تلاوت) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپل ځان ته اړوي. او لوست کلمه په کلمه لولي او زده کوونکي یې وریسې تکراروي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي چې پر خپلو ځایونو کې په ناسته سره د لوست اول پړاو کلمه په کلمه ولولي او نور زده کوونکي یې وریسې تکرارکړي. | زده کوونکي له ښوونکي څخه وروسته لوست جمله په جمله تکراروي.<br>زده کوونکي لوست |

| | | |
|---|---|---|
| | بیا زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو لوست په چوپه خوله سره ولولي او خپله دی د ټولګي نظم کنټرولوي او د زده کوونکو ستونزې حلوي.<br>بیا زده کوونکي پر تکرار ګماري ترڅو د ده پر تعقیب لوست جمله په جمله ولولي.<br>په دریم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست پـه مناسـب غـږ سـره تلاوت کوي.<br>وروسته د لوست د آخري چوکاټ کلمې د تختې پر مـخ لیکـي او پـر زده کوونکـو یـې تمرین کوي.<br>بیا له څو هغو زده کوونکو څخه چې په ټولګیوال فعالیت کې کمه ونـډه اخلـي غـواړي ترڅو هر یو لوست ولولي.<br>د دې فعالیت په ترڅ کې زده کـوونکي تشـویق کـوي او هغـه زده کـوونکي چې غلطـي کوي په حوصله او مهرباني سره یې غلطۍ اصلاح کوي. | تمرینوي.<br>زده کـــوونکي خپـــل فعالیتونه تر سره کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي د (اَبْصَارِهِمْ) کلمه پر تخته سره ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست دریم پړاو ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟<br>٤- څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟ | زده کـــــــــوونکي د ښـــوونکي پوښـــتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو نننی لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: در ویشتم

## سرلیک: د بقرې سورت د(۸) آیت تلاوت

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره آشنایي پیدا کړي.
- د لوست کلمې په ښه ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره علاقه پیداکړي.

**اړینه پوهه:**

په (مَن) او (یَقُولُ) کلمو کې ادغام راغلی ځکه له نون ساکن څخه وروسته د (ی) توری راغلی دی .

ادغام: ادغام مصدر دی د افعال له باب څخه دی او د یو توری په بل توري کې د داخلیدلو په معنی سره دی په داسې توګه چې د اول توري کوم اثر پاتې نشي. او د هغه په اداء کې ژبه یوازې یو ځل پورته شي او یو مشدد توری تلفظ شي.

ادغام په خبرو کې اسانتیا را منځ ته کوي، کله کله چې یو حرف یوځل تلفظ شي او پیوست همدا حرف تکرار شي نو دا په تلفظ کې ثقیل او دروندوالی رامنځ ته کوي نو ددې ثقل او دروندوالي د له منځه وړولو په غرض دغه دواړه توريې یو په بل کې مدغم کېږي او دواړه دیوه ښائسته توري په شکل تلفظ کیږي له همدې کبله ویل کیږي چې ادغام د کلام ښایست دی. لکه: إذ ذهب چې اول ذال په دویم ذال کې مدغم شوی او یو مشدد ذال تلفظ کیږي.

ادغام شپږ توري لري او هغه عبارت دي له: ( ی، ر، م، ل، و، ن ) چې په یرملون کلمه کې جمع شوي دي.

**د تدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي د (اَبۡصَارِهِمۡ) کلمه د تختې پر مخ ولیکي؟ | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>زده کوونکي د ښوونکي په تعقیب سره لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخې لولي. |

| | | |
|---|---|---|
| د لوست وړاندیز ۲۵ دقیقې | ښوونکی د نوي لوست د عنوان (دبقرې سورت د ۸ ایت تلاوت) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپل ځان ته اړوي. او د لوست اول پړاو په خپله لولي او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو يې د ده په تعقیب سره تکرار کړي.<br>بیاوروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره ولولي او په خپله د ټولګي نظم کنترولوي او د هغوی ستونزې حلوي.<br>وروسته زده کوونکي په دې سره مکلف کوي څو د ده په تعقیب سره دويم پړاو جمله په جمله تعقیب کړي.<br>په دريم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي.<br>وروسته د لوست د آخري چوکات کلمې د تختې پر مخ لیکي او په زده کوونکو یې تمرینوي.<br>بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هر يو په خپل وار سره پر خپلو ځایونو کې په ناسته د لوست پړاوونه په مناسب غږ سره ولولي.<br>ښوونکی د دوی لوست ته غوږ نیسي او غلطۍ يې اصلاح کوي.<br>د دې فعالیت په ترڅ کې زده کوونکي تشویق کوي او غلطۍ يې اصلاح کوي. | زده کوونکي لوست تمرين کوي.<br>زده کوونکي خپل فعالیتونه سرته رسوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوك كولای شي د (النّاس) كلمه پر تخته وليكي؟<br>۲- څوك كولای شي د لوست دريم پړاو ولولي؟<br>۳- څوك كولای شي د لوست دويم پړاو ولولي؟<br>٤- څوك كولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| **کورنی دنده:** | زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو ننني لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: څلور ویشتم

## سرلیک: د بقرې سورت د(۹) آیت تلاوت

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره آشنایي پیدا کړي.
- د لوست کلمې په صحیح ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره علاقه پیداکړي.

**اړینه پوهه:**

ادغام شپږ توري لري چې عبارت دي له ( ی، ر، م، ل، و، ن ) څخه چې په "یرملون" کلمه کې راټول شوي دي.

ادغام له غنې سره څلور توري لري او هغه عبارت دي له ( ي، ن، م، و) ینمو څخه. دا په هغې صورت کې چې ساکن نون او تنوین په یوه کلمه کې او د ادغام توری په بله کلمه کې وي او که چیری ساکن نون او ادغام په خلاف د دې وو یعنی په یوه کلمه کې راغلي وو بیا مطلق اظهار منځ ته راځي. لکه په ( قنوان، صنوان، دنیا، بنیان ).

ادغام غیر له غنې: کله چې له ساکن نون یا تنوین څخه وروسته یو توری له (ل، د ) څخه راشي ادغام غیر له غنې را منځ ته کیږي یعنی بې له دینه چې غږ خیشوم یا د پوزې وروستی برخې ته ورسیږي اوله هغې څخه استفاده وشي ادغام منځ ته راځي لکه: (مِّن رَّبِّهِمْ، هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ)

**د تدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او د حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي د (النَّاسِ) کلمه پر تختې ولیکي؟ | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>زده کوونکي د ښوونکي په تعقیب سره لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخې لولي. |
| د لوست وړاندیز ۲۵ دقیقې | ښوونکی د نوي لوست د عنوان له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپل ځان ته اړوي. او د لوست اول پړاو کلمه په کلمه لولي او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو په ده پسې یې تکرار کړي.<br>وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي څو لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او خپله د ټولګي نظم کنترولوي او د زده کوونکو ستونزې حلوي. | زده کوونکي لوست تمرین کوي.<br>زده کوونکي خپل فعالیتونه سرته رسوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | وروسته له دوو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو په خپلو ځایونو کې د لوست اول پړاو کلمه په کلمه ولولي او نور زده کوونکي يې تکراروي.<br>بیا زده کوونکي په دې سره مکلف کوي ترڅو د ده په تعقیب سره دويم پړاو جمله په جمله تعقیب کړي.<br>په دريم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته راواړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي.<br>وروسته د لوست د وروستي چوکات کلمې د تختې پر مخ ليکي او په زده کوونکو يې تمرين کوي.<br>وروسته له هغو زده کوونکو څخه چې په تولګيوال فعاليت کې کمه ونډه اخلي غواړي ترڅو هر يو لوست ولولي.<br>د دې فعاليت په ترڅ کې زده کوونکي هڅوي. او غلطۍ يې په حوصله او مهربانۍ سره اصلاح کوي. | |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي د (يَشْعُرُونَ) کلمه پر تخته وليکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست دريم پړاو ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست دويم پړاو ولولي؟<br>٤- څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کيږي ترڅو لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: پنځه ویشتم

## سرلیک: د بقرې سورت د(۱۰) آیت تلاوت

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره آشنایي پیدا کړي.
- د لوست کلمې په صحیح شکل سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره علاقه پیداکړي.

**اړینه پوهه:**

اقلاب: په لغت کې د یو حالت څخه بل حالت ګرځیدلو ته ویل کیږي.

او د تجوید په اصطلاح کې هغه دی چې هر کله وروسته له تنوین یا ساکن نون څخه د (ب) توری راشي اقلاب منځ ته راځي ساکن نون او تنوین په (ب) سره بدلیږي.

د بیلګې په توګه: (اَلِیمٌ بِمَا، مِن بَعْدِ).

د یادولو وړ ده چې د اقلاب تلفظ د اخفاء او غنې په مراعاتولو سره د اجرا وړ ګرځي.

**د تدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي مخکینی لوست تلاوت کړي. ؟ | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>زده کوونکي د ښوونکي په تعقیب سره لوست کلمه په کلمه له مخه لولي. |
| د لوست وړاندیز ٢٥ دقیقې | ښوونکی د نوي لوست د عنوان [دبقرې سورت د۱۰ایت تلاوت] له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام ځان ته رااړوي. او د لوست اول پړاو کلمه په کلمه لولي او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو په ده پسې یې تکرار کړي.<br>وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او خپله د ټولګي نظم کنترولوي او د زده کوونکو ستونزې حلوي.<br>وروسته له دوو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو د لوست اول پړاو کلمه په کلمه ولولي او نور زده کوونکي یې تکرار کړي. | زده کوونکي لوست تمرین کوي.<br>زده کوونکي خپل فعالیتونه سرته رسوي. |

| | | | |
|---|---|---|---|
| | وروسته زده کوونکي مکلف کوي ترڅو د ده په تعقیب سره دویم پړاو جمله په جمله ولولي.<br>په دریم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته راګرځوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي.<br>بیا د لوست د آخري چوکات کلمې د تختې پر مخ لیکي او په زده کوونکو یې تمرین کوي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو لوست په مناسب غږ سره ولولي.<br>ښوونکی د دوی لوست ته غوږ نیسي او غلطۍ یې اصلاح کوي.<br>د دې فعالیت په ترڅ کې زده کوونکي هڅوي. او هغه زده کوونکي چې غلطۍ کوي په ډېره حوصله او مهربانۍ سره د هغوی غلطۍ اصلاح کوي. | | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه**:<br>۱- څوک کولای شي د (یَشْعُرُونَ) کلمه پر تخته ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست دریم پړاو ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟<br>٤- څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: شپږو ویشتم

## سرلیک: د بقرې سورت د (۱۱) آیت تلاوت

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره آشنایي پیدا کړي.
- د لوست کلمې په صحیح ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:**

د ( حا) او (ها) د تورو د تلاوت په وخت کې باید په (لَهُمْ، نَحْنُ) کلمو کې کوښښ وشي ترڅو هر یو له خپل مخرج څخه اداشي چې د (ح) مخرج د حلق منځ او د (هـ) مخرج د حلق آخر دی.

ډیرځله که چیرته د دوو تورو په تلفظ کې دقت ونشي نو دا ستونزه منځ ته راځي چې ماشومان یو توری د بل توري له مخرج څخه اداکوي.

**د تدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له حوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي لکه:<br>څوک کولای شي مخکینی لوست تلاوت کړي. ؟ | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>زده کوونکي د ښوونکي په تعقیب سره لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخې لولي. |
| د لوست وړاندیز ۲٥ دقیقې | د نوي لوست د عنوان [دبقرې سورت د۱۱ ایت تلاوت] له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام ځان ته را اړوي. او د لوست اول پړاو کلمه په کلمه لولي او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست د ده په تعقیب سره تکرار کړي.<br>وروسته له دوو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو د لوست اول پړاو کلمه په کلمه ولولي او نور زده کوونکي یې تکرار کړي<br>او زده کوونکي په دې سره مکلف کوي ترڅو د ده په تعقیب سره دویم پړاو جمله په جمله ولولي | زده کوونکي وروسته د ښوونکي څخه لوست جمله په جمله تکراروي.<br>زده کوونکي خپل فعالیتونه ترسره کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | په دریم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته راواړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي.<br>وروسته د لوست د وروستي چوکاټ کلمې د تختې پر مخ لیکي او په زده کوونکو یې تمرین کوي.<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي څو لوست په چوپه خوله سره مطالعه کړي او د د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>د دې فعالیت په ترڅ کې زده کوونکي هڅوي. او غلطۍ یې په ډېره حوصله او مهربانۍ سره اصلاح کوي. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي د (مُصْلِحُونَ) کلمه پر تخته ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست دریم پړاو ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟<br>۴- څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: اووه ویشتم

## سرلیک: د بقرې سورت د(۱۲) آیت تلاوت

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده‌کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره آشناشي.
- د لوست کلمې په صحیح ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:**

د (ء) او (ع) په تورو باندې د تلاوت پر محال نطق کول په (الاَّ، يَشْعُرُونَ) کلمو کې کوښښ وشي ترڅو هر یو له خپل مخرج څخه اداشي چې د (ء) مخرج د حلق آخر او (ع) مخرج د حلق وسط دی.

ډیرځله که د دې تورو په تلفظ کې دقت ونه شي غالباً دا ستونزه را منځ ته کیږي چې ماشومان یو توری د بل توري له مخرج څخه اداء کړي.

**د تدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده‌کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي لکه:<br>څوک کولای شي مخکینی لوست تلاوت کړي. ؟ | زده‌کوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>زده‌کوونکی د ښوونکي په تعقیب سره لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخې لولي. |
| د لوست وړاندیز ۲٥ دقیقې | ښوونکی د نوي لوست د عنوان (دبقرې سورت د۱۲ایت تلاوت) له لیکلو څخه وروسته د زده‌کوونکو پام ځان ته رااړوي. او د لوست اول پړاو کلمه په کلمه لولي او زده‌کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو د ده په تعقیب سره یې تکرار کړي.<br>وروسته له دوو زده‌کوونکو څخه غواړي څو په خپلو ځایونو کې په ناسته سره د لوست اول پړاو کلمه په کلمه ولولي او نور زده‌کوونکي یې تکرار کړي.<br>او زده‌کوونکي په دې سره مکلف کوي څو د ده په تعقیب سره دویم پړاو جمله په | زده‌کوونکي ښوونکي پسې لوست جمله په جمله تکراروي.<br>زده‌کوونکي لوست تمرین کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | جمله ولولي.<br>وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او خپله د ټولګي نظم کنترولوي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>په درېیم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته رااړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي.<br>بیا د لوست د آخري چوکاټ کلمې د تختې پر مخ لیکي او په زده کوونکو یې تمرین کوي.<br>د دې فعالیت په ترڅ کې زده کوونکي هڅوي. او د دوی غلطۍ په ډېره حوصله او مهربانۍ سره اصلاح کوي. | زده کوونکي خپل فعالیتونه ترسره کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي د (الاَّ، يَشْعُرُونَ) کلمه پر تخته سره ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست درېیم پړاو ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟<br>٤- څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کېږي ترڅو لوست لس ځله ولولي. | |

**لوست**: **اته ويشتم**

**سرليک**: **د بقرې سورت د(۱۳) آيت تلاوت**

مخ:

وخت: يو درسي ساعت ٤٥ دقيقې

موخې: زده کوونکي بايد:

- د بقرې له سورت سره آشناشي.
- د لوست کلمې په صحيح ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحيح ويلو سره علاقه پيدا کړي.

**اړينه پوهه:**

الف، لام: هر کله چې له الف او لام څخه وروسته يوله څوارلسو شمسي تورو څخه راشي د لام ادغام په وروسته توري کې واجبيږي يعني الف او لام نه تلفظ کيږي لکه: (النَّاسُ، السُّفَهَاء)

شمسي توري عبارت دي له ( ط، ث، ص، و، ت، ض، ذ، ن، د، س، ظ، ز، ش، ل ) څخه.

د تسميې وجه يې: دې تورو ته ځکه شمسي توري ويل کيږي چې کله لمر راوخيژي ستوري نه معلوميږي نو همدارنگه کله چې له الف او لام څخه وروسته دا توري راشي نو لام پټيږي.

**د تدريس تگ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه

**مرستندويه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سريزه ٥ دقيقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولگي تنظيمولو او حاضرۍ اخيستلو څخه وروسته مخکينی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي مخکينی لوست تلاوت کړي؟ | زده کوونکي لوست ته غوږ نيسي. |
| د لوست وړانديز ٢٥ دقيقې | د نوي لوست د عنوان (دبقرې سورت د۱۳ايت تلاوت) له ليکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپل ځان ته رااړوي. او د لوست اول پړاو کلمه په کلمه لولي. او زده کوونکو ته ښوونه کوي څو د ده په تعقيب سره يې تکرار کړي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست اول پړاو کلمه په کلمه ولولي او نور زده کوونکي يې تکرار کړي.<br>او زده کوونکي په دې سره مکلف کوي ترڅو د ده په تعقيب سره دويم پړاو جمله په جمله ولولي.<br>وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او خپله دټولگي نظم کنترولوي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي. | زده کوونکي د ښوونکي په تعقيب سره لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخې لولي.<br>زده کوونکي د ښوونکي څخه وروسته لوست جمله په جمله تکراروي. |

| | | |
|---|---|---|
| | په دریم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي.<br>د لوست د آخري چوکاټ کلمې د تختې پر مخ لیکي او په زده کوونکو یې تمرین کوي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي څو هر یو په خپل وار سره د لوست پړاوونه په مناسب غږ سره ولولي او ښوونکی د دوی لوست ته غوږ نیسي او غلطۍ یې اصلاح کوي.<br>وروسته له هغو زده کوونکو څخه چې په ټولګیوال فعالیت کې کمه ونډه اخلي غواړي ترڅو هر یو لوست ولولي.<br>د دې فعالیت په ترڅ کې زده کوونکي هڅوي. او په ډېره حوصله او مهربانۍ سره یې غلطۍ اصلاح کوي. | زده کوونکي خپل فعالیتونه سرته رسوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي د (السُّفَهَاءَ) کلمه پر تخته ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست دریم پړاو ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟<br>٤- څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو لوست لس ځله ولولي. | |

**لوست: نه ویشتم**

**سرلیک: د بقرې سورت د(۱۴) آیت تلاوت**

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره آشنا شي.
- د لوست کلمې په ښه توګه تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:**

**د دې لوست د** (خَلَوْ) په کلمه کې د لین مد راغلی دی چې لاندې به یې تشریح کړو:

د لین مد: لین په لغت کې نرمی ته ویل کیږي او د تجوید له لحاظه کله چې په کلمه کې دغه مد وي نرم ادا کیږي.

دا مد د مد د تورو له لحاظه د مد د نورو ډولونو سره فرق لري او د لین توري عبارت دي له ( و، ی ) څخه چې ( و، ی ) ساکن او ماقبل یې مفتوح وي او د هغې سبب فقط سکون دی.

لکه: خلو، خوف، یوم، البیت، الطیر، الیل.

د لین د مد میزان: د لین مد حکم په درې ډوله دی یعنې، لنډ، منځنی او اوږد.

**د تدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي مثلاً:<br>څوک کولای شي مخکینی لوست تلاوت کړي؟ | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| د لوست وړاندیز ۲۵ دقیقې | ښوونکی د نوي لوست دعنوان (دبقرې سورت د١٤ایت تلاوت له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي. او د لوست اول پړاو کلمه په کلمه لولي. او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو د ده په تعقیب سره یې تکرار کړي.<br>وروسته له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي څو لوست په چوپه خوله مطالعه کړي.<br>بیاله دوو زده کوونکو څخه غواړي څو د لوست اول پړاو کلمه په کلمه ولولي او نور زده کوونکي یې تکرار کړي.<br>او زده کوونکي په دې سره مکلف کوي څو د ده په تعقیب سره دویم پړاو جمله په جمله ولولي. | زده کوونکي د ښوونکي په تعقیب سره لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخې لولي.<br>زده کوونکي د ښوونکي څخه وروسته لوست جمله |

| | | |
|---|---|---|
| | په دریم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته راواړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي.<br>وروسته د لوست د آخري چوکاټ کلمې د تختې پر مخ لیکي او په زده کوونکو یې تمرین کوي.<br>له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار لوست په مناسب غږ سره ولولي او ښوونکی د دوی لوست ته غوږ نیسي او د غلطۍ یې اصلاح کوي.<br>بیا له هغو زده کوونکو څخه چې په ټولګیوال فعالیت کې کمه ونډه اخلي غواړي ترڅو هر یو لوست ولولي.<br>د دې کړنې په ضمن کې زده کوونکي هڅوي او غلطۍ یې په ډېره حوصله او مهربانۍ سره اصلاح کوي. | په جمله تکراروي.<br>زده کوونکي خپل فعالیتونه سرته رسوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي د (مَعَکُمْ) کلمه پر تخته ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست دریم پړاو ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟<br>٤- څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: دیرشم

## سرلیک: د بقرې سورت د (۱۵) آیت تلاوت

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره آشنا شي.
- د لوست کلمې په ښه ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:**

د اللهﷻ دکلمې د لام حکمونه: د لام توری په څنو ځایونو کې ډک او په څنو ځایونو کې تش ویل کیږي او په هغه ځایونو کې چې تش ویل کیږي په لاندې ډول دي:

۱- که د الله جل جلاله د لام توری وروسته له کسرې څخه واقع شي تش ویل کیږي (بِسْمِ اللّهِ،الْحَمْدُ للّهِ).

۲- که د الله جل جلاله د لام توری وروسته له هغه ساکن حرف څخه راشي چې ماقبل یې مکسور وي. همدارنګه تش ویل کیږي (وَيُنَجِّي اللّهُ).

۳- هر کله چې د الله جل جلاله د لام توری وروسته له تنوین څخه راشي همدارنګه تش ویل کیږي (قَوْمًااللّهُ ).

هغه ځایونه چې د الله جل جلاله لفظ ډک ویل کیږي:

هرکله چې د الله جل جلاله د لام توری وروسته له فتحې او ضمې څخه راشي ډک ویل کیږي لکه (آَخَذَ اللّهُ، رُسُلُ اللّهِ) ځکه فتحه او ضمه د اداکولو پر وخت کې د تالو په طرف سره میلان کوي.

ناویلي دې پاتې نشي چې تش لام ( مرقق )د ژبې له څنګ څخه او ډک لام ( مفخم) له ټولې ژبې څخه اداکیږي نو لـه دې وجې نه د تفخیم عمل نسبتاً ترقیق ته کم دی.

**د تدریس تګ لاره:** پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی لـه احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولـو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي مخکینی لوست تلاوت کړي؟ | زده کـوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| د لوست وړاندیز ۲۵ دقیقې | د نوي لوست د عنوان (دبقرې سورت د۱۵ایت تلاوت) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي. او د لوست اول پړاو کلمه په کلمه لولي. او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو د ده په تعقیب سره یې تکرار کړي.<br>وروسته له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او د | زده کوونکي د ښوونکي په تعقیب سره لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخې |

| | | |
|---|---|---|
| | زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>بیا له هغو زده کوونکو څخه چې په ټولګیواله کړنه کې کمه ونډه اخلي غواړي ترڅو هر یو لوست ولولي.<br>او هغه زده کوونکي چې غلطي کوي په ډېره حوصله او مهرباني سره د هغوی غلطي اصلاح کوي.<br>وروسته له دوو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر یو د لوست اول پړاو کلمه په کلمه ولولي او نور زده کوونکي يې تکرار کړي.<br>او زده کوونکي په دې سره مکلف کوي څو د ده په تعقیب سره دویم پړاو جمله په جمله ولولي.<br>په دریم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته راواړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي.<br>د لوست د آخري چوکاټ کلمې د تختې پر مخ لیکي او په زده کوونکو يې تمرین کوي. | لولي.<br>زده کوونکي د ښوونکي څخه وروسته لوست جمله په جمله تکرار وي.<br>زده کوونکي خپل فعالیتونه سرته رسوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي د (طُغۡیَانِهِمۡ) کلمه پر تخته ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست دریم پړاو ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟<br>٤- څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست لس ځله تکرار کړي. | |

## لوست: یو دیرشم

## سرلیک: د بقرې سورت د (۱۲) آیت تلاوت

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره آشنا شي.
- د لوست کلمې په ښه شکل سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:**

**د تدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي مخکینی لوست تلاوت وکړي؟ | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| د لوست وړاندیز ۲٥ دقیقې | د نوي لوست عنوان (دبقرې سورت د ۱٦ ایت تلاوت)له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي. او د لوست اول پړاو کلمه په کلمه لولي. او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو د ده په تعقیب سره یې تکرار کړي.<br>وروسته له څو هغو زده کوونکو څخه چې په ټولګیواله کړنه کې کمه ونډه اخلي غواړي ترڅو هر یو لوست ولولي.<br>او د دې کړنې په ترځ کې زده کوونکي تشویق کوي.<br>وروسته له څلورو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو د لوست اول پړاو کلمه په کلمه ولولي او نور زده کوونکي یې تکرار کړي.<br>او زده کوونکي په دې سره مکلف کوي ترڅو د ده په تعقیب سره دویم پړاو جمله په جمله ولولي.<br>په دریم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي.<br>بیا له زده کوونکو څخه غواړي ترڅو لوست په چوپه خوله مطالعه کړي.<br>او خپله د ټولګي نظم کنترولوي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي. | زده کوونکی د ښوونکي په تعقیب سره لوست کلمه په کلمه لولي.<br>زده کوونکي وروسته له ښوونکي څخه لوست جمله په جمله تکراروي.<br>زده کوونکي خپلې کړنې تر سره کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | وروسته د لوست د وروستي چوکاټ کلمې د تختې پر مخ لیکي او په زده کوونکو یې تمرین کوي.<br>بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر یو په خپل وار په خپلو ځایونو کې په ناسته سره لوست په مناسب غږ سره ولولي او ښوونکی د دوی لوست ته غوږ نیسي او غلطی یې اصلاح کوي. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي د (رِبحَت) کلمه پر تخته سره ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي دلوست دریم پراګراف ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست دویم پراګراف ولولي؟<br>٤- څوک کولای شي د لوست اول پراګراف ولولي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: دوه دیرشم

## سرلیک: د بقرې سورت د(۱۷) آیت تلاوت

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره آشنا شي.
- د لوست کلمې په صحیح شکل سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:**

د (یُبْصِرُونَ) په کلمه کې عارضي مد یا یا عارض للسکون مد راغلی.

عارض للسکون مد: هغه مد ته ویل کیږي چې سکون وروسته د مد له توري څخه د وقف او وصل په حالت کې نه وي ثابت شوی لکه (نَسْتَعِينُ، يُبْصِرُونَ، يُنفِقُونَ، يُوقِنُونَ).

دې مد ته ځکه عارضي ویل کیږي چې سکون د وقف په حالت کې عارض شوی دی.

د عارض مد حکم: د عارضي مد اندازه د بعضو قاریانو په نظر د یو الف او دوو الفو او دریو الفو په اندازه اوږدیږي. یو الف ته (قصر) دویم ته توسط او دریم ته (طول) ویل کیږي.

**د تدریس تګ لاره:** پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوك كولاى شي مخكينى لوست تلاوت كړي؟ | زده کوونکې لوست ته غوږ نیسي. |
| د لوست وړاندیز ۲٥ دقیقې | ښوونکی د نوي لوست د عنوان (دبقرې سورت د۱۷ایت تلاوت) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي. او د لوست اول پړاو کلمه په کلمه لولي. او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو د ده په تعقیب سره یې تکرار کړي.<br>وروسته له زده کوونکو څخه غواړي ترڅو لوست په چوپه خوله سره ولولي او خپله د ټولګي نظم کنترولوي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>بیا له څلورو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو په خپلو ځایونو کې په ناسته سره د لوست اول پړاو کلمه په کلمه ولولي او نور زده کوونکي یې تکرار وي. | زده کوونکي د ښوونکي په تعقیب سره لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخې لولي.<br>زده کوونکي وروسته له ښوونکي |

| | | |
|---|---|---|
| | وروسته له هغو زده کوونکو څخه چې په ټولګیواله کړنه کې کمه ونډه اخلي غواړي ترڅو هر یو لوست ولولي د دې کړنې په ترڅ کې زده کوونکي تشویق کوي. او غلطۍ یې په ډېره حوصله او مهربانۍ سره اصلاح کوي. او زده کوونکي په دې سره مکلف کوي ترڅو د ده په تعقیب سره د لوست دویم پړاو جمله په جمله ولولي. په دریم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي. او بیا د لوست د چوکاټ کلمې د تختې پر مخ لیکي او په زده کوونکو یې تمرین کوي. | څخه لوست جمله په جمله تکراروي. زده کوونکي لوست تمرین کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي د (بِنُورِهِمْ) کلمه د تختې پر مخ ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست دریم پړاو ولولي؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟<br>٤- څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست لس ځله تکرار کړي. | |

## لوست: دري دیرشم

## سرلیک: د بقرې سورت د(۱۸) آیت تلاوت

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره آشنا شي.

- د لوست کلمې په ښه ډول سره تلفظ کړې شي.

- د کلمو له صحیح ویلو سره علاقه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:**

په ۱۸ آیت کې اقلاب، اظهار او اخفاء منځ ته راغلې د (صُمٌّ) له کلمې څخه وروسته چې (ب) توری راغلی دی نو دلته اقلاب منځ ته راځي.

څکه اقلاب یو حرف لري چې عبارت له (ب) څخه دی. د ( لکم) له کلمې څخه وروسته چې آخر یې تنوین دی (ع) توری راغلی دی او (ع) د اظهار څخه دی نو دلته اظهار منځ ته راځي.

وروسته د عمي له کلمې څخه چې آخر یې تنوین دی د(ف) توری راغلی دی او (ف) د اخفاء له تورو څخه ده نو دلته اخفاء منځ ته راځي.

**د تدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي مخکینی لوست تلاوت کړي؟ | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| د لوست وړاندیز ۲٥ دقیقې | ښوونکی د نوي لوست درسلیک (دبقرې سورت د۱۸ایت تلاوت) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته رااړوي. او د لوست اول پړاو کلمه په کلمه لولي. او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو د ده په تعقیب سره یې تکرار کړي.<br>وروسته له څلورو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو په خپلو ځایونو کې په ناسته سره د لوست اول پړاو کلمه په کلمه ولولي او نور زده کوونکي یې تکرار کړي.<br>بیا زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او خپله د ټولګي نظم کنټرولوي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>وروسته له هغو زده کوونکو څخه چې په ټولګیواله کړنه کې کمه ونډه اخلي غواړي ترڅو هر یو لوست ولولي. | زده کوونکي د ښوونکي په تعقیب سره لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخې لولي.<br>زده کوونکي وروسته له ښوونکي څخه لوست جمله په |

| | | |
|---|---|---|
| | پړاو د حرکتونو نومونه واخلي. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱-څوک کولی شی (فرعون) کلمه د تختې پر مخ ولیکی؟<br>۲-څوک کولای شي د لوست دریم پړاو ولولي؟<br>۳-څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟<br>٤ -څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟ | زده‌کوونکي د ښوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي ترڅو لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: پنځه شپیتم

## سرلیک: د بقرې سورت د(۵۰) آیت تلاوت

مخ:

وخت: یو ښوونیز ساعت (٤٥ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره بلدتیا پیدا کړي.
- د لوست کلمې په ښه ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره مینه پیدا کړي.

**اړینه پوهه**: د (فِرْعَوْنَ) په کلمه کې د "را" توری باریک ویل کیږي ځکه چې ساکن دی د مخکیني توري حرکت حکم چې کسره ده خپل ځان ته اخلي.

د (تَنظُرُونَ) په کلمه کې وروسته له ساکن نون څخه د (ظ) حرف راغلی، نو له دې امله اخفاء کیږي همدارنګه په دې کلمه باندې مد عارض للسکون راغلی چې په درې ډوله دی.

۱- طول ۲- توسط ۳- قصر

**دتدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي برابرولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي مخکینی لوست تلاوت کړي؟ | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي |
| د لوست وړاندیز ۲۵ دقیقې | -د نوي لوست سرلیک [دبقرې سورت۵۰آیت]له لیکلوڅخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او د لوست ټول پراوونه کلمه په کلمه لولي او نورو زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو په ده پسې یې تکرار کړي.<br>وروسته زده‌کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په پټه خوله سره مطالعه کړي او خپله د ټولګي نظم کنترول او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>-وروسته له پنځو تنو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو په خپلو ځایونو کې په ناسته سره د لوست ټول پړاوونه کلمه په کلمه ولولي او نور زده کوونکي یې وریسې تکرار کړي.<br>وروسته ښوونکی د لوست درې کلمې د تختې پر مخ لیکي اوله دریو تنو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو د کلمو د حرکتونو نومونه واخلي البته مرسته او تشویق منځ ته راځي. | زده‌کوونکي د ښوونکي په تعقیب سره لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخې لولي.<br>زده‌کوونکي خپلې کړنې سرته رسوي.<br>زده کوونکي وروسته له ښوونکي څخه لوست جمله په جمله تکراروي |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱-څوک کولای شی (فرقنا) کلمه د تختې پر مخ ولیکی؟<br>۲-څوک کولای شي د لوست دریم پړاو ولولي؟<br>۳-څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟<br>٤ -څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟ | زده‌کوونکي د ښوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي ترڅو لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: شپږ شپیتم

## سرلیک: د بقرې سورت د(۵۱) آیت تلاوت

مخ:

وخت: یو ښوونیز ساعت (٤٥ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره بلدتیا پیدا کړي.
- د لوست کلمې په ښه ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره مینه پیدا کړي.

**اړینه پوهه**: د بقرې سورت په مدینه منوره کې نازل شوی دی پرته له (۲۸۱آیت څخه چې دا د حجة الوداع په کال په منی کې نازل شوی دی دا سورت ۲۸٦ آیتونه او څلویښت رکوع ګانې لري د مصحف یا تلاوت د ترتیب له مخې دویم سورت دی. او د نـزول له پلوه ۸۷ سورت دی.

د بقرې سورت تلاوت یو ځانګړی فضلیت لرونکی دی چې ددې په هکله نبیﷺ په لاندې حدیث شریف کې داسې فرمایلي دي.

(عن ابی هریره قال قال رسول الله (ﷺ) لاتجعلو بیوتکم مقابر إن شیطان یفر من البیت الذی یقرأ فیه سورة البقرة. ( رواه مسلم )

ژباړه: د خپلو کورونو څخه هدیرې مه جوړوئ ځکه شیطان له هغه کور څخه تښتي چې په هغه کې سورت بقره ویل کیږي.

**دتدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سـريزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي برابرولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي چې قران کریم په کومه ژبه نازل شوی دی؟ | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي |
| د لوسـت وړانـدیز ۲۵ دقیقې | -د نوي لوست سرلیک(د بقرې سورت د ۵۱ آیت تلاوت)له لیکلوڅخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره لولي.<br>-وروسته له دریو تنو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو په خپلو ځایونو کې په ناسته سره لوست په غور سره ولولي او خپله ټولګی برابروي او غلطۍ یې اصلاح کوي.<br>وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوی ترڅو لوست په پټه خوله سره مطالعه کړي او خپله د ټولګي نظم کنترول او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>-وروسته د لوست د آخری چوکاټ کلمې پر تخته لیکي او پر زده کوونکو یې تمرین کوي. | زده کوونکي لوست په پټه خوله سره مطالعه کوي.<br>څلور تنه زده کوونکي په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راځي اوخپلې کړنې سر ته رسوي او نور زده کوونکي د هغوی کړنوته پام اړوي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شی (بعده) کلمه له حرکتونو سره د تختې پر مخ ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د (موسی) په کلمه کې کوم توری نه تلفظ کیږي؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟ | زده‌کوونکي د ښوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي ترڅو لوست لس ځله ولولي. | |

**لوست: اوه شپیتم**

**سرلیک: د بقرې سورت د(۵۲-۵۳) آیتونو تلاوت**

مخ:

وخت: یو ښوونیز ساعت (٤۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره بلدتیا پیدا کړي.

- د لوست کلمې په ښه ډول سره تلفظ کړی شي.

- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره مینه پیدا کړي.

**اړینه پوهه**: د (عَفَوْنَا) په کلمه کې د لین مد راغلی دی ځکه چې د ساکن (واو) څخه مخکې حرکت فتحه ده او د (عَنکُم) په کلمه کې اخفاء شتون لري ځکه چې د نون ساکن څخه وروسته د (ك) توری راغلی دی او د کاف توری یو له پنځلسو تورو د اخفاء څخه دی او د (مِّن بَعْدِ) په کلمه کې اقلاب راغلی دی ځکه چې د ساکن نون څخه وروسته د (ب) توری راغلی دی او د (تشکرون) په کلمه کې مد عارض لسکون راغلی دی چې په دریو حالتونو کې ویل کیږي.

۱- طول

۲- توسط

۳- قصر

او د (موسی) په کلمه کې د (ی) توری لیکل کیږي اما نه تلفظ کیږي.

د (الفرقان) په کلمه کې د (را) توری ډک ویل کیږي ځکه خپله ساکن دی او د مخکیني توري حرکت چې ضمه ده خپل ځان ته اخلي.

**دتدریس تگ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| ســــــــریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی لـه احـوال پوښـتنې، تـولګې برابرولـو او حاضـرۍ اخیسـتلو څخـه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي ووایي د موسی په کلمه کې کوم توری نه تلفظ کیږي؟ | زده‌کوونکي لوست ته غوږ نیسي |

| | | |
|---|---|---|
| د لوست ورانديز ۲۵ دقيقې | -د نوي لوست سرليک (د بقرې سورت د ۲ ۵- ۳ ۵آيتونوتلاوت)له ليکلوڅخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره لولي.<br>-وروسته له څلورو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو په خپلو ځايونو کې په ناسته سره لوست په زيرکتيا سره ولولي او خپله د ټولګی نظم برابر ساتي او غلطی يې اصلاح کوي.<br>بيا زده‌کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره مطالعه کړي او خپله د ټولګي نظم کنترولوي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>-وروسته د لوست د آخري چوکاټ کلمې پر تخته ليکي او پر زده کوونکو يې تمرين کوي<br>بيا د زده کوونکو لپاره د ليکلو او تلفظ کولو شکل روښانه کوي.<br>له څلورو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر يو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او يوه يوه کلمه د تختې له مخې دويم ځل وليکي ددې په ضمن کې د هغوی سره مرسته کوی او هڅوي يې. | زده‌کوونکي لوست په پټه خوله سره مطالعه کوي.<br><br>څلور زده‌کوونکي په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راځي اوخپلې کړنې سرته رسوي او نور زده کوونکي د هغوی کړنوته پام اړوي. |
| ۱۰ دقيقې<br><br>۵ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱-څوک کولای شي (عفونا) کلمه له حرکتونوسره د تختې پر مخ وليکي؟<br>۲ - څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟<br>۳-څوک کولای شي د لوست دويم پړاو ولولي؟ | زده‌کوونکي د ښوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي ترڅو لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: اته شپیتم

## سرلیک: د بقرې سورت د(۵۴-۵۵) آیتونوتلاوت

مخ:

وخت: یو ښوونیز ساعت (٤٥ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره بلدتیا پیدا کړي.

- د لوست کلمې په ښه ډول سره تلفظ کړی شي.

- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره مینه پیدا کړي شي.

**اړینه پوهه:**

د آیت مکمل تفسیر: یعنې هغه کسان چې خوسي ته یې سجده نده ایښې، هغوی د هغه کسان ووژني چې خوسی یې خدای ګڼلی او سجده یې ورته کړې وه، ځینې وایي بنی اسرائیل په دریو ډلو ویشل شوي وو.

1 - هغه ډله چې هم یې خوسي ته سجده نه وه کړې او هم یې نورو ته وویل چې خوسي ته سجده مه کوئ.

2 - هغه ډله چې پخپله یې خوسي ته سجده ونکړه مګر نور یې د خوسي له سجدې نه منع نه کړل.

3 - هغه ډله چې پخپله یې خوسي ته سجده وکړه په دریمه ډله امر و شو چې ټول دې ووژل شي (دوهمې ډلې ته وویل شول: چې تاسې هغوی ووژنئ چې دا ستاسې د چوپ پاتې کیدلو توبه شي او اولې ډلې په دې کې له سره ګډون ونه کړ ځکه هغوی ته ددې توبې هیڅ اړتیا نه وه پاتې او له سره یې ګناه نوه کړې.

دا قضیه په بنی اسرائیلو کې وه اما په اسلام کې همدارنګه چوپتیا او بې تفاوتي د ګناهونو په وړاندې ګناه ده چې داسې اشخاص د الله جل جلاله په نیولو کې راګیر کیږي لکه څرنګه چې په لاندې حدیث کې دا موضوع په تفصیل سره ذکر شوې ده.

عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَوْحَى الله عَزَّ وَجَلَّ إِلَى جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ أَن اقْلِبْ مَدِينَةَ كَذَا وَكَذَا بِأَهْلِهَا، قَالَ: فَقَالَ: يَا رَبِّ إِنَّ فِيهِمْ عَبْدَكَ فُلَانًا لَمْ يَعْصِكَ طَرْفَةَ عَيْنٍ، قَالَ: فَقَالَ: اقْلِبْهَا عَلَيْهِمْ، فَإِنَّ وَجْهَهُ لَمْ يَتَمَعَّرْ فِيَّ سَاعَةً قَطُّ " (رواه البیهقي )

له حضرت جابر (رضي الله عنه) څخه روایت دی چې رسول الله (ﷺ) فرمایلي دي الله جل جلاله جبرائیل (علیه السلام) ته حکم وکړ داچې فلانکی ښار له اهل سره په بل مخ واړ وه چې داسې او داسې صفتونه لري. جبرائیل (علیه السلام) وفرمایل: د دې ښار د اهل په منځ کې ستا فلانی بنده دی چې ستا نه یې هیڅ کله نافرماني نده کړې د سترګو په رپ سره هم نافرماني نه کوي. الله جل جلاله وفرمایل ښار په ده او په ټول اهل یې ور وران اوګډوډ کړه ځکه چې هیڅ کله او په هیڅ ساعت کې یې مخ زما د دین لپاره توییر ندی کړی.

یعنې بی پروایي یې اختیار کړې چې په نیکو کارونو یې امر او له بدو کارونو یې منع نه کوله، متأسفانه د نن ورځې مسلمانان هم په دې موقف کې قرار لري او احساس د مسؤلیت نکوي.

تفسیر: د بې شمیره الهي نعمتونو سره سره چې بنی اسرائیلو ته ورکړل شوي بیایې هم موسی (علیه السلام) ته وویل چې مونږ باور نه کوو دا چې ته وایې چې دا کلام (تورات) د الله جل جلاله دی ترڅو الله جل جلاله په خپلو سترګو ونه وینو، نو ددې نا جایزې کړنې له امله د تندر په واسطه سره هلاک شول.

**تدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| ســــــریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي برابرولو او حاضرۍ له اخیستلو څخه وروسته دځوپوښتنو په طرحه کولو مخکینی لوست ارزوي لکه:<br>څوک کولی شي د (عفونا) کلمه سره له حرکتونو د تختې پر مخ ولیکي؟ | زده کـوونکي لوسـت تـه غوږ نیسي. |
| د لوســـــت وړانـــدیز ٢٥ دقیقې<br><br><br><br><br><br><br><br><br>٥ دقیقې | -د نـوي لوسـت سـرلیک(دبقـرې سـورت د٥٤ - ٥٥آیتونـوتلاوت)لـه لیکلوڅخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره لولي.<br>-وروسته له څلورو تنو زده کوونکـو څخـه غـواړي ترڅـو پـه خپلـو ځـایونو کـې پـه ناسته سره لوست په زیرکتیا سره ولولي او خپله ټولګي کنترولوي او غلطی یې ورتـه اصلاح کوي.<br>وروسته زده‌کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په پټه خوله سره مطالعـه کـړي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>-بیا د لوست د آخري چوکاټ کلمې پر تخته لیکـي او پـر زده کوونکـو یـې تمـرین کوي.<br>له دوو تنو زده‌کوونکو غواړي ترڅو هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشـي او یوه یوه کلمه د تختې له مخې دویم ځل ولیکي ددې په ضمن کې د هغـوی سـره مرسته کوي او هڅوي یې. | زده‌کوونکي لوست په پټه خوله سره مطالعه کوي<br><br>څلـور زده‌کـوونکي پـه خپـل وار سـره د ټـولګي مخې تـه راځـي اوخپلې کړنې سرته رسوي او نـور زده کـــونکي د هغـــوی کړنوته پام اړوي. |
| ١٠ دقیقې | **ارزونه:**<br>١-څوک کولای شي ووایي چې (موسی) ﷺ کوم مسوولیت په غاړه لرلو؟<br>٢ - څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟<br>٣-څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟ | زده‌کـوونکي د ښـوونکي پوښـــــتنوته ځوابونــــه ورکوي. |
| | **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي ترڅو لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: نه شپیتم

## سرلیک: د بقرې سورت د(۵۲-۵۷) آیتونوتلاوت

مخ:

وخت: یو ښوونیز ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره بلدتیا پیدا کړي.
- د لوست کلمې په ښه ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له سم ویلو سره مینه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:**

دا واقعه هغه وخت منځ ته راغله چه موسی (علیه السلام) اویا تنه بنی اسرائیلو څخه غوره کسان له ځانه سره د (طور) غره ته بیولي وو چې د الله ﷻ کلام واوري. کله چه دوی په خپلو غوږونو د پاک الله جل جلاله خبرې واوریدلې، نو د بنی اسرائیلو هم دې اویا تنو منتخبو سړیو وویل چې موږ په داسې خبرو چې ویونکی یې نه راښکاري او نه یې وینو، باور نشو کولی موږ ته الله ﷻ راوښیئ چې په خپلو سترگو یې ووینو او په غوږو سره یې خبرې واورو ددې غوښتنې له امله ؤ چې وربانديې تندر ولویده او د تندر له املـه ټول و وژل شول.

(ظَلَمُونَا) الایه- او ظلم نه ؤکړی دوی پر مونږ بانديې په دغه عصیان سره لیکن دوی په خپلو ځانونو بانديې ظلم کوي پـه کفـران او عصیان سره اول یې داسې ظلم وکړ چه د من او سلوی په زیرمه (ذخیره) کولو ئې پیل (شروع) کړ چه هغه ورسته، تعفن (بـدبویی) به یې ختلې، دویم یې د هغې د مبادلې غوښتنه وکړه چه نسک، هوږه، پیاز او نورې غلې او ترکاری راکړی شي، چه د دې له امله (وجی)په راز راز (قسم قسم) ربړونو ( تکلیفونو ) اخته شول.

**تدریس تگ لاره:** پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| ســـــــریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولگي برابرولو او حاضری اخیستلو څخه وروسته د څو پوښتنو په طرحه کولو مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شی د لوست اول پړاو په صحیح ډول سره ولولي؟ | زده کـوونکي لوسـت تـه غوږ نیسي. |

| | | |
|---|---|---|
| د لوســـــت ورانـــدیز ۲۵ دقیقې | -د نـوي لوسـت سـرلیک(دبقـرې سـورت د ٦ ۵- ۷ ۵آیتونوتلاوت)لـه لیکلوڅخـه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره لولي.<br>-وروسته له څلورو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو په خپلو ځایونو کې په ناسته سره لوست په زیرکتیا سره ولولي او خپله ټولګی کنترول کوي او غلطی یې اصلاح کوي.<br>وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په پټه خوله سره مطالعه کړي او خپله د ټولګي نظم برابرساتي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>-وروسته د لوست د آخري چوکاټ کلمې پر تخته لیکي او پر زده کوونکو یې تمرین کوي.<br>له دوو زده‌کوونکو څخه غواړي ترڅو هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او یوه یوه کلمه د تختې له مخې دویم ځل ولیکي ددې په ضمن کې د هغوی سره مرسته کوي او هڅوي یې. | زده‌کوونکي لوست په پټه خوله سره مطالعه کوي<br>څلـور زده‌کـوونکي پـه خپـل وار سـره د ټـولګي مخې ته راځي او خپلې کړنې سرته رسوي او نـور زده کـــونکي د هغـــوی کړنوته پام اړوي. |
| ۱۰ دقیقې<br><br>۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱-څوک کولای شی ووایي چې د (نرى)په کلمه کې کوم توری نه تلفظ کیږي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟<br>۳-څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟ | زده‌کـوونکي د ښـوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي ترڅو لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: اویاوم

## سرلیک: د بقرې سورت د (۵۸-۵۹) آیتونوتلاوت

مخ:

وخت: یو ښوونیز ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د بقرې له سورت سره بلدتیا پیدا کړي.
- د لوست کلمې په ښه ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره مینه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:**

وروسته له هغه چې بنی اسرائیل د جرم مرتکب شول او پخپل ځان یې ظلم وکړ او په صحرا د زیاتو ګرځېدو له امله په تنګ شول الله ﷻ هغوی ته امر وکړ چې د (اریحا) ښار ته لاړ شي ځینو ویل دا د بیت المقدس ښار وه او داسې امر شوي وه چې سجده کوونکي ددې ښار له دروازې څخه تېر شي او دا په حقیقت کې یو بدني شکر و او همدارنګه داسې امر شوی وه چې توبه کوونکي تېر شي او دا شکر د ژبې وه. تر څو الله ﷻ هغوی ته ببښنه وکړي. خو په راتلونکي آیت کې دا ثابته شوه چې دې بدبخته قوم بې دلیله ټینګتیا وکړه.

د ظلموا کلمې آخر کې الف راغلی چې هغه ته د نحوې له نظره الف د جمع وایي. اما د تلاوت په جریان کې نه تلفظ کیږي، نو لدې امله باید د اطفالو تلاوت ته باید ځیر شو که اشتباه رامنځ ته کیږي باید اصلاح شي.

د قولاً په کلمه کې د دوو زورو تنوین راغلی او وروسته له هغه د (غ) توری چې دا د اظهار له تورو څخه دی، نو تنوین اظهار کیږي د (فَاَنزَلْنَا) په کلمه کې اخفاء راغلې ځکه وروسته د نون ساکن څخه (ز) راغلې او داله پنځلسو تورو د اخفاء څخه دی او د (رجزاً) په کلمه کې تنوین راغلی او وروسته ترینه د میم توری راغلی چې دا له شپږو تورو د ادغام سره له غنې څخه دی، نو دلته ادغام سره له غنې تلفظ کیږي او د (السماء) په کلمه کې متصل مد راغلی دی باید د تلاوت په وخت کې یې حق ادا شي.

**دتدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي برابرولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته دخو پوښتنو په طرحه کولو مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولی شي د لوست اول پړاو په سم ډول سره ولولي؟ | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. |

| | | |
|---|---|---|
| د لوســـــت ورانـــــديز ۲۵ دقيقې | -د نوي لوست سرليک (د بقرې سـورت د ۸ ۵- ۹ ۵آيتونوتلاوت)لـه ليکلوڅخـه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتـابونو تـه اړوي او لوسـت پـه مناسـب غـږ سـره لولي.<br>-وروسته له څلورو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو په خپلو ځايونو کې پـه ناسـته سره لوست په زيرکتيا سره ولولي او خپله د ټولګي نظم برابر ساتي او غلطـي يـې اصلاح کوي.<br>بيا زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په پټه خوله سره مطالعه کړي او خپلـه د ټولګي نظم برابر ساتي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>-وروسته د لوست د آخرې چوکاټ کلمې پر تخته ليکـي او پـر زده کوونکـو يـې تمرين کوي.<br>له دوو زده‌کوونکو غواړي ترڅو هر يو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او يوه يوه کلمه د تختې له مخې دويم ځل وليکي ددې په ضمن کې د هغـوی سـره مرسته کوی او هڅوي يې. | زده‌کوونکي لوست په پټه خوله سره مطالعه کوي.<br>څلـور زده‌کـوونکي پـه خپـل وار سـره د ټـولګي مخې تـه راځـي اوخپلې کړنــې ســرته رســوي اونورزده کونکي د هغوی کړنوته پام واړوي. |
| ۱۰ دقيقې<br><br>۵ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱-څوک کولای شی ووايی چې د (نرى)په کلمه کې کوم توری نه تلفظ کيږی؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟<br>۳-څوک کولای شي د لوست دويم پړاو ولولي؟ | زده‌کـوونکي د ښـوونکي پوښـــــتنوته ځوابونـــــه ورکوي. |
| | **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي ترڅو لوست لس ځله ولولي. | |

## لوست: یو اویاوم

## سرلیک: د الناس سورت تلاوت

مخ:

وخت: یو ښوونیز ساعت (٤٥ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د الناس له سورت سره بلدتیا پیدا کړي.
- د لوست کلمې په ښه ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کلمو له صحیح ویلو سره مینه پیدا کړي.

**اړینه پوهه:**

د الناس او الفلق دواړه سورتونه مکي دی او د رسول الله (ﷺ) نه د جادو د دفع په اړه په رسول اکرم (ﷺ)، نازل شوي، دوه شیطان صفته نجونو په رسول اکرم (ﷺ) باندې جادو کړی وه او د رسول الله (ﷺ) ویښتانو ته یې یولس غوټې و راچولې وې او هغه یې په یوه څاه کې اچولې وې او د هغې د سحر په نتیجه کې رسول کریم (ﷺ) ته یوه نا علاجه مریضي پیدا شوه، نو الله جل جلاله د هغې د دفع په خاطر دوه سورتونه د الناس او الفلق نازل کړل چې یو لس آیتونه لري. او په نزول د هر یو آیت سره یوه غوټه خلاصه شوه تر آخري غوټې پورې او رسول اکرم (ﷺ) شفا پیداکړه، نو له دې امله دې دوه سورتونو ته د معوذتین سورتونه ویل کیږي او وروسته له هغه نه به رسول الله ﷺ هره شپه د ویده کیدلو په وخت کې معوذتین تلاوت کول او همدارنګه خپلو صحابه وو ته یې ددې دوه سورتو د تلاوت سفارښتنه کوله. همدارنګه عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې ددې سورتونو تلاوت د سحر د دفع کولو او د انس او جن د شیطانانو د شرڅخه د خلاصون باعث کيږي.

**دتدریس تګ لاره:** پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| ســـــریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي برابرولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوك کولی شی مخکینی لوست تلاوت کړي؟ | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| د لوســـت وړاندیز ۲۵ دقیقی<br><br>۵ دقیقې | -د نوي لوست سرلیک (دالناس سورت تلاوت )له لیکلوڅخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او د لوست اول پړاو کلمه په کلمه لولي او نورو زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو په ده پسې یې تکرار کړي.<br>-وروسته له پنځو تنو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو په خپلو ځایونو کې په ناسته سره د لوست اول پړاو کلمه په کلمه ولولي او نور زده کوونکي یې تکرار کړي.<br>بیا د لوست دویم پړاو جمله په جمله لولي او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو په ده پسې یې په مناسب غږ سره تکرار کړي.<br>-په دریم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي.<br>وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په پټه خوله سره مطالعه کړي او خپله د ټولګي نظم برابر ساتي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>-وروسته د لوست د آخري چوکاټ کلمې پر تخته لیکي او پر زده کوونکو یې تمرین کوي<br>بیا د زده کوونکو لپاره د لیکلو او تلفظ کولو شکل ښکاره کوي.<br>له څلورو زده کوونکو غواړي ترڅو هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او یوه یوه کلمه د تختې له مخې دویم ځل ولیکي ددې په ضمن کې د هغوی سره مرسته کوي | زده‌کـــــــــوونکي د ښوونکي په تعقیب سره لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخې لولي.<br><br>زده‌کوونکي خپلې کړنې سرته رسوي.<br><br>زده کـــــــــوونکي وروسته له ښوونکي څخه لوست جمله په جمله تکراروي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱څوك کولای شی (رب الناس) کلمه د تختې پر مخ ولیکی؟<br>۲ -څوك کولای شي د لوست اول پړاو ولولي؟<br>۳-څوك کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟ | زده‌کـــــــــوونکي د ښـوونکي پوښـتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** زده کوونکو ته لارښوونه کوي ترڅو لوست لس ځله ولولي. | |

# لوست: دوه اویاوم

## سرلیک: د الناس سورت یادول

مخ:

وخت: یو ښوونیز ساعت (٤٥ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د الناس سورت د یادولو له طریقې سره بلدتیا پیداکړي.
- د الناس سورت له یاده په صحیح ډول سره تلفظ کړی شي.
- د الناس سورت له یادولو سره مینه پیداکړي.

**اړینه پوهه:**

**تدریس تگ لاره:** پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| ســـــریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولگي برابرولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوك کولای شي مخکینی لوست تلاوت کړي؟ | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي |
| د لوســــت وړانــــدیز ۲۵ دقیقې | -د نوي لوست سرلیك [الناس سورت یادول] له لیکلوڅخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست پخپله لولي او نور زده‌کوونکي د تلاوت په اوریدلو مکلف کوي.<br>وروسته زده‌کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو هر یو خپل انډول ټولگیوال ته لوست تلاوت کړي اوبیایې دویم زده کونکی ولولي اواول غوږ ونیسي په همدې ډول یو د بل غلطی اصلاح کوي.<br>وروسته څلورو زده کوونکو ته چې په ټولگي کې یې فعالیت کم وي دنده ورکوي ترڅو په خپل وار سره د تختې مخې ته راشي او سورت الناس تلاوت کړي البته مرسته او تشویق منځ ته راځي.<br>بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي ترڅو لوست په پټه خوله ولولي او د (الناس) سورت یادکړي او خپله د ټولگي نظم برابر ساتي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي البته زده کوونکو ته پوره وخت ورکوي او ورته ښوونه کوي چې دا سورت یادکړي.<br>بیا شپږو تنو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په خپلو ځایونو کې په ناسته سره یو یو آیت تلاوت کړي په دې وخت کې د دوی کړنې نورې هم د هڅونې لامل گرځي. | زده‌کــــــوونکي د ښوونکي په تعقیب سره لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخې لولي.<br>زده‌کوونکي خپلې کړنې سرته رسوي.<br>زده کــــــوونکي وروسته له ښوونکي څخه لوست جمله په جمله تکراروي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ څوک کولای شی دالناس سورت اول آیت ولولي ؟<br>۲ -څوک کولای شي ووايي چې دالناس سورت څو آیتونه لري ؟<br>۳ -څوک کولای شي ووايي چې مونږ دالناس سورت ولې يادوو ؟ | زده‌کـــــــوونکي د ښـوونکي پوښـتنوته ځوابونه ورکوي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي ترڅو لوست له یاده لس ځله ولولي. | |

## لوست: دري اوياوم

## سرليک: د الفلق سورت تلاوت

**مخ:**

**وخت: يو ښوونيز ساعت (۴۵ دقيقې)**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د الفلق له سورت سره بلدتيا پيدا کړي.
- د لوست کليمې په صحيح ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست د کليمو له صحيح ويلو سره مينه پيداکړي.

**اړينه پوهه:**

**دتدريس تگ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلييز

**مرستندويه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سريزه ۵ دقيقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولگي برابرولو او حاضرۍ اخيستلو څخه وروسته مخکينی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شي مخکينی لوست تلاوت کړي؟ | زده کوونکي لوست ته غوږ نيسي. |
| د لوست وړانديز ۲۵ دقيقې | -د نوي لوست د سرليک [دالفلق سورت تلاوت] له ليکلوڅخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او د لوست اول پړاو کلمه په کلمه لولي او نورو زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو په ده پسې يې تکرار کړي.<br>-وروسته له پنځو تنو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو په خپلو ځايونو کې په ناسته سره د لوست اول پړاو کلمه په کلمه ولولي او نور زده کوونکي يې تکرار کړي.<br>وروسته د لوست دويم پړاو جمله په جمله لولي او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو په ده پسې لوست په مناسب غږ سره تکرار کړي.<br>بيا ښوونکی د لوست دري کلمې د تختې پر مخ ليکي اوله دريو زده‌کوونکو څخه غواړي ترڅو د کلمو د حرکتونو نومونه واخلي البته مرسته او هڅونه صورت نيسي.<br>-په دريم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي.<br>وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوی ترڅو لوست په پټه خوله سره مطالعه کړي او خپله د ټولگي نظم کنترولوي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>وروسته له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر يو په خپل وار سره په خپلو ځايونو | زده کونکي په پټه خوله سره لوست مطالعه کوي.<br>زده کونکی په خپل وار سره يو په بل پسې ايتونه تلاوت کوي.<br>زده‌کوونکي خپلې کړنې سرته رسوي.<br>زده کوونکي وروسته له ښوونکي څخه لوست جمله په جمله تکراروي.<br>زده‌کوونکي د |

| | | |
|---|---|---|
| | کې په ناسته د لوست پړاوونه په مناسب غږ سره ولولي، ښوونکی د هغوی لوست ته غوږ نيسي او غلطۍ يې اصلاح کوي.<br>-وروسته د لوست د آخری چوکاټ کلمې پر تخته ليکي او پر زده کوونکو يې تمرين کوي وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو د لوست د آخري چوکاټ د کلمو د حرکتونو نومونه واخلي. | ښــوونکي پوښــتنوته ځوابونه ورکوي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه**:<br>۱-څوک کولی شی (حاسد) کلمه د تختې پر مخ وليکی ؟<br>۲ -څوک کولای شي د لوست دريم پړاو ولولي؟<br>۳-څوک کولای شي د لوست دويم پړاو ولولي؟<br>٤څوک کولی شی د لوست اول پړاو ولولي ؟ | |
| ۵ دقيقې | **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوی ترڅو لوست پنځه ځله ولولي. | |

## لوست: څلور اویاوم

## سرلیک: د الفلق سورت یادول

مخ:

وخت: یو ښوونیز ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د الفلق سورت د یادولو له طریقې سره بلدتیا پیدا کړي.
- د الفلق سورت له یاده په صحیح ډول سره تلفظ کړی شي.
- د الفلق سورت له یادولو سره مینه پیداکړي.

**اړینه پوهه:**

**تدریس تگ لاره:** پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنی، ټولگي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوك كولی شي مخكينی لوست تلاوت کړي؟ | زده‌کوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| د لوست وړاندیز ٢٥ دقیقې | -د نوي لوست د سرلیك [دالفلق سورت یادول)له لیکلوڅخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست پخپله لولي او نور زده کوونکي د تلاوت په اوریدلو مکلف کوي.<br>وروسته زده‌کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره مطالعه کړي او د الناس سورت حفظوي او خپله د ټولگي نظم کنترولوي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>البته پوره وخت به ورته ورکول کیږي او ورته سپارښتنه کوي تر څو اول یو ایت تلاوت کړي او وریسې بل آیت.<br>وروسته شپږو تنو زده‌کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو په خپل وار سره په خپلو ځایونو کې یویو آیت ولولي او هغوی د کړنو په ترڅ کې وهڅول کیږي.<br>وروسته زده‌کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو هر یو خپل اندډول ټولگیوال ته لوست تلاوت کړي او دویم زده کونکی یې ولولي اواول غوږ ونیسي په همدې ډول یو د بل غلطی اصلاح کوي.<br>وروسته څلورو تنو زده کوونکو ته چې په ټولگي کې یې کمه وندده اخستې وي دنده ورکوي ترڅو په خپل وار سره د تختې مخې ته راشي او سورت الفلق تلاوت کړي البته مرسته او تشویق منځ ته راځي. | زده‌کوونکی د ښوونکي په تعقیب سره لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخه لولي.<br><br>زده‌کوونکي خپلې کړنې سرته رسوي.<br><br>زده کوونکي وروسته له ښوونکي څخه لوست جمله په جمله تکراروي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه**:<br>۱-څوک کولای شي د الفلق سورت دری اولي آیتونه ولولی ؟<br>۲ -څوک کولای شي ووایي چې الفلق سورت څو آیتونه لري؟<br>۳-څوک کولای شي ووایی چې مونږ د الفلق سورت ولې یادوو ؟ | زده‌کـــــــوونکي د ښـوونکي پوښـتنوته ځوابونه ورکوي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي ترڅو لوست له یاده لس ځله ولولي. | |

## لوست: پنځه اویاوم

## سرلیک: د مسد سورت تلاوت

مخ:

وخت: یو ښوونیز ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د مسد سورت تلاوت سره اشنا شي.
- د لوست کلمې په صحیح ډول سره تلفظ کړی شي
- د لوست دکلموله صحیح لوستلو سره مینه پېدا کړي.

**اړینه پوهه:**

د مسد سورت د مکي سورتونو له جملې څخه دی او پنځه آیتونه لري الله جل جلاله دا سورت نازل کړ ترڅو د دوو بدبختو ( ابولهب چې اصل نوم یې عبدالعزی ؤ له خپلې ښځې سره چې ام جمیل نومیده) سرنوشت وټاکي دوی هغه څوک وو چې رسول اکرم (ﷺ)ته به یې زیات تکلیفونه رسول کله به چې رسول اکرم (ﷺ) خلک جمع کول او د اسلام دعوت به یې کاوه ابولهب بـه هـم راتلو او د اسلام نه به یې بیرته خلک اړول او ویل به یې د دوی خبروته غوږ مه نیسئ دا دروغ وایي دا بې دینه شوی یعنې د پلرونو دین یې پرېښې دی.

کله چې رسول اکرم (ﷺ) خلک د صفا غونډۍ ته وغوښتل ترڅو ویې ویروي ابولهب خپلو لاسونو ته ټکان ورکړ او ویې ویل تباه شې آیا مونږ دې د همدې خبرې لپاره را بللي یو؟ الله جل جلاله د مسد سورت په نزول سره د هغه بد بخت ځواب ورکړ هغه ؤ چې د بدر له غزوې څخه وروسته د ابولهب په جسم باندې زخم را ښکاره شو او ډېر بد بویه شو چې اولا دونو یې له کوره بیرون کړ او په همدې بد حالت کې له دنیا څخه لاړ او دده ښځې به د رسول اکرم (ﷺ) په لاره کې ډېر اغزي اچول له همدې املـه یـې یـوه ورخ رسۍ ترغاړې تاو شوه او دا هم هلاکه شوه.

**د تدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| د زده کوونکو کړنې | د ښوونکي کړنې | وخت |
|---|---|---|
| زده‌کوونکي لوست ته غوږنیسي | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، تولګې برابرولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوی.<br>څوک کولای شي مخکینی لوست تلاوت کړي؟ | سریزه ۵ دقیقې |
| زده کوونکي دې په چوپه خوله سره لوست مطالعه کړي<br><br>زده کوونکي دې په خپل وار سره یوبه بل پسې آیتونه تلاوت کړي<br><br>زده‌کوونکي خپلې کړنې سرته رسوي<br><br>زده کوونکي وروسته له ښوونکي څخه لوست جمله په جمله تکراروي | -د نوي لوست د سرلیک له لیکلو (د مسد د سورت تلاوت) څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او د لوست اول پړاو کلمه په کلمه لولي او نورو زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو په ده پسې یې تکرار کړي.<br>-وروسته له پنځو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو په خپلو ځایونو کې په ناسته سره د لوست اول او دویم پړاو کلمه په کلمه ولولي او نور زده کوونکو یې تکرار کړي.<br>-وروسته ښوونکی د لوست دري کلمې د تختې پر مخ لیکي او له دریو زده‌کوونکو څخه غواړي ترڅو د کلمو د حرکتونو نومونه واخلي البته مرسته او هڅونه صورت نیسي.<br>-په دریم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي.<br>-بیا زده‌کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره مطالعه کړي او خپله د ټولګې نظم برابر ساتي د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>-وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر یو په خپل وار سره په خپلو ځایونو کې په ناسته د لوست پړاوونه په مناسب غږ سره ولولي، ښوونکی د هغوی لوست ته غوږ نیسي او غلطۍ یې اصلاح کو ي.<br>-بیا د لوست د آخري چوکاټ کلمې پر تخته لیکي او پر زده کوونکو یې تمرین کوي.<br>وروسته د زده کوونکو لپاره ښوونه کوي ترڅو د لوست د آخري چوکاټ د کلمو د حرکتونو نومونه واخلي. | د لوست وړاندیز ۲۵ دقیقې |
| زده‌کوونکي د ښوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي | **ارزونه:**<br>۱-څوک کولای شي د(کسب) کلمه د تختې پر مخ ولیکی؟<br>۲ -څوک کولای شي د لوست دریم پړاو ولولي؟<br>۳-څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟<br>٤څوک کولی شی د لوست اول پړاو ولولي؟ | ۱۰ دقیقې<br><br>۵ دقیقې |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست پنځه ځله ولولي. | |

**لوست: شپږ اویاوم**

**سرلیک: د مسد سورت یادول**

مخ:

وخت: یو ښوونیز ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د مسد سورت له یا دولو سره آشنا شي.

- د مسد سورت له یاده په صحیح ډول سره تلفظ کړی شي.

- د مسد سورت له یادولو سره مینه پیداکړي.

**اړینه پوهه: دمخکیني لوست تابع**

**د تدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ٥ دقیقی | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي برابرولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي.<br>څوک کولای شی مخکینی لوست تلاوت کړي؟ | زده‌کوونکی دې لوست ته غوږ نیسي. |
| د لوست وړاندیز ۲٥ دقیقې | -د نوي لوست د سرلیك (دمسدسورت یادول)له لیکلوڅخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست پخپله لولي او نور زده کوونکي د تلاوت په اوریدلو مکلف کوي.<br>وروسته زده‌کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره مطالعه کړي او د مسد سورت یاد کړي او خپله د ټولګي نظم برابر ساتي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>وروسته شپږو زده‌کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو په خپل وار سره په خپلو ځایونو کې یو یو آیت ولولي او د هغوی د کړنې په ترڅ کې هڅول کیږي.<br>وروسته زده‌کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو هر یو خپل ټولګیوال ته لوست تلاوت کړي او یو د بل غلطی اصلاح کړي.<br>وروسته څلورو زده کوونکو ته چې په ټولګیوال فعالیت کې کمه ونډه اخلي دنده ورکوي ترڅو په خپل وار سره د تختې مخې ته راشي او سورت مسد تلاوت کړي البته مرسته اوهڅونه صورت مومي | زده‌کوونکي ښوونکي پسې لوست کلمه په کلمه د کتاب له مخه لولي.<br>زده‌کوونکي خپلې کړنې سرته رسوي.<br>زده کوونکي وروسته له ښوونکي څخه لوست جمله په جمله تکراروي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه**:<br>۱-څوک کولای شی دمسد سورت دری اول آیتونه ولولي ؟<br>۲- څوک ویلای شي چې د مسد سورت څو آیتونه لري ؟<br>۳-څوک کولای شي ووایي چې مونږ د مسد سورت ولې یادوو ؟ | زده‌کـــــــوونکي د ښوونکي پوښتنو تـه سم ځوابونه ورکوي |
| ۵ دقیقې | **کورنی دنده**: ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي ترڅو لوست له یاده لس ځله ولولي. | |

## لوست: اوه اویاوم

## سرلیک: د د النصر سورت تلاوت

مخ:

وخت: یو ښوونیز ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د النصر سورت سره بلدتیا پیداکړي.
- د لوست کلمې په صحیح ډول سره تلفظ کړی شي.
- د لوست دکلمو له صحیح ویلو سره مینه پیداکړي.

**اړینه پوهه:** د نصر مبارک سورت په مدینه منوره کې نازل شوی او درې آیتونه لري، او دا هغه وخت نازل شو چې خلک ډلې ډلې په اسلام مشرف کیدل. د دې سورت نزول د نبی کریم (ﷺ)د رسالت خاتمې ته یوه اشاره ده او له همدې امله نبی کریم (ﷺ) خپلې لور فاطمې ته د رحلت زیری ورکړی چې هغه په ژړا شوه نو بیا یې ورته وویل اولین هغه څوک چې زما سره یوځایه کیږي هغه به ته یې.

په (جاء)کلمه کې متصل مدراغلی دی ځکه دمدتوری اوسبب یې په یوه کلمه کې راغلي دي.

په (یدخلون) کلمه کې صغری قلقله راغلطې ده ځکه دقلقلې توری چې (د) دی په وسط دکلمې کې راغلی دی.

په (دین الله )کلمه کې دلله ج لفظ تش ویل کیږي ځکه مخکینی توری یې مکسوردی.

**د تدریس تګ لاره**: پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سـریزه ٥ دقیقی | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګې برابرولـو او حاضـری اخیسـتلو څخه وروسـته مخکینی لوست ارزوی.<br>څوک کولی شی مخکینی لوست تلاوت کړي؟ | زده‌کوونکي لوسـت ته غوږ نیسي. |

| | | |
|---|---|---|
| د لوست وراندیز ۲۵ دقیقی | -د نوي لوست د سرلیک [النصرسورت تلاوت]له لیکلوڅخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او د لوست اول پړاو کلمه په کلمه لولي او نورو زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو په ده پسې یې تکرار کړي.<br>-وروسته له پنځو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو په خپلو ځایونو کې په ناسته سره د لوست اول پړاو کلمه په کلمه ولولي او نور زده کوونکي یې ور سره تکرار کوي.<br>وروسته د لوست دویمه برخه جمله په جمله لولي او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو دده په تعقیب لوست په مناسب غږ سره تکرار کړي.<br>وروسته ښوونکی د لوست درې کلمې د تختې پر مخ لیکي اوله دریو زده‌کوونکو څخه غواړي ترڅو د کلمو د حرکتونو نومونه واخلي البته مرسته او هڅونه صورت نیسي.<br>-په دریم پړاو کې د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره تلاوت کوي.<br>وروسته زده‌کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او خپله د ټولګي نظم برابر او د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر یو په خپل وار سره په خپلو ځایونو کې په ناسته د لوست برخې په مناسب غږ سره ولولي، ښوونکی د هغوی لوست ته غوږ نیسي او غلطی یې ورته اصلاح کو ي.<br>-بیا د لوست د آخري چوکاټ کلمې پر تخته لیکي او پر زده کوونکو یې تمرین کوي وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو د لوست د آخري چوکاټ د کلمو د حرکتونو نومونه واخلي. | زده کوونکي په چوپه خوله سره لوست مطالعه کوي.<br><br>زده کونکي په خپل وار سره یو په بل پسې آیتونه تلاوت کوي.<br><br>زده‌کوونکي خپلې کړنې سرته رسوي.<br><br>زده کوونکي وروسته له ښوونکي څخه لوست جمله په جمله تکراروي. |
| ۱۰ دقیقې<br><br>۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱څوک کولی شی د (کان) کلمه د تختې پر مخ ولیکي؟<br>۲ -څوک کولای شي د لوست دریم پړاو ولولي؟<br>۳-څوک کولای شي د لوست دویم پړاو ولولي؟<br>٤څوک کولی شي د لوست اول پړاو ولولي؟ | زده‌کوونکي د ښوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنی‌دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست پنځه ځله ولولي. | |

## لوست: اته اویاوم

## سرلیک: د النصرسورت یادول

مخ:

وخت: یو ښوونیز ساعت ٤٥ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د النصر سورت له یا دولو سره آشنا شي.

- د النصر سورت له یاده په صحیح ډول سره تلفظ کړی شي.

- د النصر سورت له یادولو سره مینه پیداکړي.

**اړینه پوهه:** د نصر مبارک سورت په مدینه منوره کې نازل شوی او درې آیتونه لري، او دا هغه وخت نازل شو چې خلک ډلې ډلې په اسلام مشرف کیدل. د دې سورت نزول د نبی کریم (ﷺ) د رسالت خاتمې ته یوه اشاره ده او له همدې امله نبی کریم (ﷺ) خپلې لور فاطمې ته د رحلت زیری ورکړی چې هغه په ژړا شوه نو بیا یې ورته ووېل اولین هغه څوك چې زما سره یوځایه کیږي هغه به ته یې.

**د تدریس تګ لاره:** پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه، ډلییز

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سـریزه ٥ دقیقی | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښـتنې، ټـولګي برابرولـو او حاضـری اخیسـتلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي. <br> څوك کولای شی مخکینی لوست تلاوت کړي؟ | زده کوونکی لوست ته غوږ نیسي. |
| د لوسـت وړانـدیز ٢٥ دقیقې | -د نوي لوست د سرلیك (دالنصرسورت یادول) لـه لیکلوڅخه وروسته د زده کوونکـو پـام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست پخپله لولي او نور زده کوونکي د تلاوت په اوریـدلو مکلـف کوي. <br> وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره مطالعه کړي او د النصر سورت یاد کړي او خپله د ټولګي نظم برابر ساتي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي. <br> وروسته شپږو زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو په خپل وار سره په خپلو ځایونو کې یو یو آیت ولولي او د هغوی د کړنې په ترڅ کې هڅول کیږي. <br> وروسته زده کوونکو ته ښوونه کیږي ترڅو هر یو خپل ټولګیوال ته لوست تلاوت کړي او یو د بل غلطی اصلاح کړي. <br> وروسته څلورو زده کوونکو ته چې په ټولګیوال فعالیت کې کمـه ونـډه اخلـي دنـده ورکـوي ترڅو په خپل وار سره د تختې مخې تـه راشـي او سـورت مسـد تـلاوت کـړي البتـه مرسـته اوهڅونه صورت مومي | زده کوونکي د ښوونکي پسې لوست کلمه په کلمه د کتاب لـه مخـه لولي. <br> زده کوونکي خپلې کړنې سرته رسوي. <br> زده کوونکي وروسته له ښوونکي څخه لوست جمله په جمله تکراروي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه**:<br>۱-څوك کولای شی دالنصر سورت دری اول آیتونه ولولي؟<br>۲- څوك ویلای شي چې د النصر سورت څو آیتونه لري؟<br>۳-څوك کولای شي ووایي چې مونږ دالنصر سورت ولې یادوو؟ | زده‌کـــــــوونکي د ښوونکي پوښتنو تـه سم ځوابونه ورکوي |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده**: ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي ترڅو لوست له یاده لس ځله ولولي. | |